پرناله (parnālá) ښځ.م. تری، ناوه، په بام کې د باران د وتو لاره.

پرناوری (parnāwáray) ص. نر.م. ۱) نېشه شوی، نېشه، خمار؛ ۲) فکرمند، اندېښمن.

پرنج (prány) نر.م. ۱) پرنجی، انترورشی، انتوسی. د پرنجی اواز؛ ۲) دوګانه، جالی، ګونده، د تاک ههٔ اوږده لښته چې سریې په خاوړو کې ښخ کړي او بیا یې د ژمي په آخر کې جلا کوي.

پرنجل (pranjə́l) مص. ل. پرنجېدل، پرچېدل، پرنجي کول، انږی کول، انتوسی کول.

پرنجي (prə́njay) نر.م. پرچي، انتوسی، پرنځی.

پرنجېدل (pranjedə́l) مص. ل. پرچېدل، پرنځېدل، انږېدل، انتوسېدل، پرنجي کول.

پرنچ (prə́nč) نر.م. پرنځ، پرنج، د پرنجي غږ، د انتوسي اواز، د انږي غږ.

پرنځ (prə́nǯ) نر.م. و.ګ. پرنچ.

پرند (parə́nd) نر.م. څادر، پروني.

پرنډ (prə́nḍ) ص. نر.م. ۱) وراني شوي شیدي، خیدک شوي شیدي؛ ۲) پرن، پرم؛ ۳) لخته شوي وینه؛ ٤) صو. نر.م. منجمد، کلک.

پرنډتوب (pranḍtób) نر.م ۱) د شیدو کلکېدنه، د شیدو تخه کېدنه؛ ۲) د وینې لخته کېدنه.

پرنډېدل (pranḍedə́l) مص.ل. ۱) تومنه کېدل، مایه کېدل؛ ۲) کلکېدل؛ ۳) وینې لخته کېدل.

پرنسیپ (prə́nsip) نر.م. اصل، مبدأ، پیل، مایه، ماده، وضع، قاعده، اساسي موضوع، د اخلاقو او چلند قواعد، عقیده، مسلک.

پرنې (pə́rnəy) ښځ.م. فریني، پیریني، یو خواږه دی چې له شیدو او د وریجو له اوړو څخه تیاریږي.

پرنی (pə́rnay) نر.م. (ج. پرني) پوړنی، سپېره او خاکي رنګه ټوټه دی.

پرو (۱) (parū́) نر.م. برو، تود باد، توده هوا، تند باد.

پرو (۲) (purū́) ص. نب. خوشې، ارزه برزه، فضول.

پروا (parwā́) ښځ.م. (ج. پرواوې) ۱) خیال، اند، فکر، لحاظ، خاطر؛ ۲) دار، ویره، باک.

پروانګي (parwā́ngi) ښځ.م. سپارښتنه، هدایت، سپارښت.

پروانه (parwānā́) ښځ.م. (ج. پرواني) ۱) پتنګ، پتې، اوربېنت؛ ۲) اجازه نامه؛ ۲) عاشق.

پروپاګند (prupāgánd) نر.م. مشهور کول، ریکلامول، د شهرت ورکولو عمل، د چا تعریف یا غندنه، له حقیقته لرې خبرې.

پروت (prót) ص. نر.م. (ج. پراته) ۱) ملاست، غځېدلی؛ ۲) ایښې، کېښودلی؛ ۳) بېکاره، بې وجهې، سست؛ ٤) موجود، په کې.

پروتوالی (protwā́lay) نر.م. ۱) ملاسته، غځېدنه؛ ۲) عرض، پلنوالی.

پروته (protá) ښځ.م. ښېرا، بد دوعایي.

پروټ (porwáṭ) ص. نر.م. چاغ، غټ پټ، څورب، غښتلی، مزی، قوي.

پروټتوب (parwaṭṭób) نر.م. چاغي، چاغوالی، مزیتوب، زورورتوب.

پروړ (proṛ) نر.م. بوس، پروړه، پوړ، پروړی، پلاله، د غنمو او اوربشو سپین بوس.

پروړوالا (proṛwālā́) ص. نب. بوس خرخوونکی، پروړ خرخوونکی.

پروړه (proṛá) ښځ.م. (ج. پروړي) ۱) بوس؛ ۲) د شولو وابنه؛ ۳) نا میده شوي وابنه.

پروزی (prózay) نر.م. غلبېل، چنوونی، چانوونی، پرویزی.

پروژه (prožá) ښځ.م. (ج. پروژې) ۱) طرح، نقشه، پروجکټ، پروګرام؛ ۲) قصد، نیت.

**پروسږ** (parosáz) ق. تېرکال، پروسږ کال.

**پروسږ کال** (prosazkā́l) ق. پروسکال، پروسږ، تېر کال، ړومبی کال.

**پروسږن** (parosazán) ص. نـر.م. تېر کال، پروسږنی، پروسکلنی، پروسکلن.

**پروسس** (prū́sɪs) نـر.م. عملیه، پروسه، تعامل، مرحله.

**پروسه** (prosá) ښځ.م. (ج. پروسې) بهیر، پروسس، عمل، مرحله، عملیه، تعامل.

**پروف** (prū́f) نـر.م. ۱) خاکه، مسوده؛ ۲) چاپ شوی کاغذ له اصلي متن سره کتل او تېروتني یې سمول؛ ۳) حل، ثبوت، اثبات.

**پروفیسر** (profisár) نـر.م. پوهاند، هغه څوک چې لوړ علمي مقام ولري.

**پروګرام** (prográm) نر.م. ۱) طرح، پروژه، د یو کار د مراحلو ټاکل؛ ۲) کرنلاره؛ ۳) تعلیمي او درسي نصاب.

**پرول** (parawál) مص.مت. ۱) ځغلول، منډه ورکول ۲) پارول؛ ۳) څه شی د غلا په ډول تښتول؛ ۴) خوځول؛ ۵) څه شی په تاو لرې غورځول.

**پرول دودی** (prūldóday) نر.م. دلالي، کمیشن.

**پرولوګ** (prológ) نر.م. پرولاګ، سریزه، مقدمه، پیل؛ د کتاب او نورو سریزه.

**پرون** (parū́n) ق. تېره ورځ یا پرون شپه، پرون ورځ، پرون شپه.

**پرونه** (parawána) ښځ.م. ۱) ځغلونه، په منډه کونه؛ ۲) د غلا په ډول تښتونه.

**پروني** (parū́nay) ص.نر.م. د پرون د ورځې، د تېرې ورځې؛ په تېرې ورځې پورې مربوط.

**پروېزی** (parwézay) نر.م. (ج. پروېزي) پروزی، پېوړی، د اوږو غلبېل، چاڼ.

**پروین** (párwin) نر.م. پرې وونې، پېروني، د ظفر ستوري، ږمبک ستوری.

**پره** (pará) ښځ.م. (ج. پرې) ۱) د ژرندې د څرخ پل یا اړې غابنې؛ ۲) د غره تېره څوکه؛ ۳) پلو، مخه؛ ۴) ډله؛ ۵) پلوي، ننګه؛ ۶) جګړه، د خپګان ښکاره کول، نوغي ورسول؛ ۷) د بیل (یوم) څنډه؛ ۸) پلټنه، لټون؛ ۹) تفتیش.

**پرهار** (parhā́r) نـر.م. ۱) ټپ، زخم، پرهر؛ ۲) د الوتلو په وخت د مرغانو د وزرونو اواز.

**پرهار پانه** (parhārpāṇá) ښځ.م. (ج. پرهارپانې) د بارتنګ پانه، بارتنګ، ګزک پانه.

**پرهارتون** (parhārtū́n) نـر.م. عملیات خونه، جراح خونه، د جراحي ځای.

**پرهارژلی** (parhārẓ́álay) ص.نـر.م. پرهارجن، پرهاري، ټپي، زخمي، مجروح، پیروژلی.

**پره جنبه** (parajanbá) ښځ.م. (ج. پرې جنبې) ډله بازي، ګوند بازي، ګوندیماري، ګوندي.

**پره دار** (paradā́r) ص. نر.م. مل، ملګری.

**پره هی** (paráhay) نـر.م. جبل، د اوسپنې کلک او مضبوط سیخ چې تیږې پرې باسي.

**پرهېز** (párhez) نـر.م. ۱) ځان ساتنه؛ ۲) د کتو ورونکو حیواناتو د کټې هغه ځای چې د زخم په اندازه غوڅ یا څیرې شوی وي.

**پرهېزانه** (parhezānā́) ښځ.م. پرېزانه، د پرهېز خواړه، د ناروغ ځانګړی خواړه.

**پرهېزګار** (parhezgā́r) ص. نـر.م. متقي، تقوا دار، له بدو ځان ساتونکی، پرهېز کوونکی.

**پرې** (pre) اد. ۱) باندې، پر، ورباندې، په، د پاسه؛ ۲) مخ. مختاړي دی لکه: پرېوتل او پرېښودل؛ ۳) ص. نب. غوڅ، قطع.

**پری** (paráy) نبخ.م. بنګه، ذل، د پیمر اکښل، اینجه، مانجه، پال کش، هغه چاری او بهل چې په دوو کسانو رابنکل کیږي.

**پریال** (paryā́l) نر.م. ۱) یو ډول کیږدی، یو ډول خیمه؛ ۲) پرده، پاریال، هغه پرده چې یوه کوټه په دوو برخو ویشي.

**پرې ایستل** (preistál) مصـ.مت. ۱) شملول، پرې باسل، غوڅول، پرخول؛ ۲) په ځای (بستره) کې بیده کول یا شملول.

**پرې اینبنکه** (preiṣáka) نبخ.م. و.ګ. پرېښکه.

**پرې باسل** (prebāsál) مصـ.مت ۱) پرخول، اړتاوول پښکورول؛ ۲) تربل، کښته ګوزارل، لاندې اچول؛ ۳) وربانډې اچول؛ ٤) بیده کول.

**پربېدل** (parebdál) مصـ.مت. پربېل، وهل، پېل، ټکول، ډبول.

**پرېت** (prit) نر.م. نبرم، حب.

**پرېټ** (paréṭ) نر.م. پرېډ، رسم ګذشت، عسکري تعلیم قدم؛ ۲) د سر ویښتان په خاص ترتیب جوړول؛ ۳) پټ پلیټ، په کالي کې بخې کول.

**پرېچ** (preč) نر.م. (ج.پرېچونه) پرچ، نالبکی، ریکیبی، بشقاب، نعلبکی.

**پرېځر** (precár) ق. خکزن، ښکښن، یوې خواته، بهل، یوې ډډې ته، بیلګلوت، ګوښې ته.

**پرېدار** (predā́r) ص.نر.م. و.ګ. پهره دار.

**پرېدل** (predál) مصـ.مت. پرېښودل، پرېښل، پرېږدل.

**پرېدل**(۲) (paredál) مصـ.ل. ۱) د الوتونکو د وزرو اواز پورته کېدل؛ ۲) غغلېدل، په منډه کېدل، ځغاستل؛ ۳) د یو شي په غلا تښتول کېدل.

**پرېر** (prer) ص.نر.م. ج. ۱) عوټ، پیپ، پند؛ ۲) په عوښو پټ، چاغ، مزی، شلند.

**پرېروالی** (prerwā́lay) نر.م. پېروالي، پندوالي، غټوالي، پرېړتوب، پرېړتیا.

**پرېړول** (prerawál) مصـ.مت. ۱) پنډول، غټول، پېړول، ضخامت زیاتول؛ ۲) مزی کول.

**پرېړه** (prerá) نبخ.م. (ج.پرېړې) ۱) غوټه، پنډه، پېړه؛ ۲) و.ګ. پروړه.

**پرېړی** (preṛáy) نبخ.م. کرېکه، ترډنه، د غنم او غلې د ساتلو لپاره له پوزي څخه جوړ شوی شی (کندو، ډوله).

**پرېړېدل** (preredál) مصـ.ل. پنډېدل، پېړېدل، غټېدل، ضخامت زیاتېدل.

**پرېز** (parez) نر.م. (ج.پرېزونه) و.ګ. پرهېز.

**پرېږه** (prežá) نبخ.م. طلاق.

**پرېږدل** (prezdál) مصـ.مت. و.ګ. پرېښودل.

**پرېږه** (prezá) ص.نب. ۱) وچکالي، کاختي وهلی، قحطي ځپلی؛ ۲) د غلې کمبود، قحطي.

**پرېسه** (prsá) ص.نب. ۱) بېکاره او وزګاره ښځه؛ ۲) وېربدلی، ډاربدلی، ترهېدلی.

**پرېشان** (prešā́n) ص.نر.م. ۱) خفه، خپه، دلګیر، سرګردان؛ ۲) خوار، بې وزلی؛ ۳) خورور، وېر.

**پرېښته** (parestá) نبخ.م. (ج. پرېښتې) فرشته، ملایکه، پرښته.

**پرېښکه** (presáka) ص.نبخ.م. (ج. پرېښکې) طلاقه شوې، پرېښودلې، پرې اېښې.

**پرېښودل** (presodál) مصـ.مت. ۱) پرېږدل، پرېښول؛ ۲) خلاصول، خوشې کول؛ ۳) اروستو پاتې کول؛ ٤) لاس اخیستل؛ ٥) طلاقول.

**پرېښون** (resún) نر.م. جوته، لېښوین، سرویغی، پسماند، پاتې شوني خوراک.

**پرېښوني** (prešúnay) نر.م. پسمانده، پاتې شوني.

**پرېښول** (presowál) مصـ.مت. و.ګ. پرېښودل.

**پرېښی** (préṣay) مف. نر.م. ۱) پرې یښی، پرېښودلی، خلاص کړی؛ ۲) پاتې کړی.

**پرېکړون** (prekṛún) نر.م. فیصله، پرېکړې، پرېکړه، پرېکون، پرېکوڼ، لنډون.

**پرېکړه** (prékṛa) ښځ.م. ۱) فیصله، پرېکړون، غوڅه؛ ۲) پرېکون، لنډون؛ ۳) کړه وړه، څېره؛ ۴) د زړه سوڅېدو وړ څېره.

**پرېکړه لیک** (prekṛalík) نر.م. فیصله لیک، فیصله نامه، قطعنامه.

**پرېکړی** (prekáṛay) مف. نر.م. ۱) غوڅ شوی، پرې شوی؛ ۲) فیصله شوی؛ ۳) ادا شوی، ادا کړی، خلاص کړی.

**پرېکول** (prekawál) مص. مت. ۱) شلول، څیرې کول؛ ۲) غوڅول؛ ۳) فیصله کول؛ ۴) کیندل.

**پرېکون** (prekún) نر.م. ۱) النډون، پرېکړون، د واده ورکولو فیصله؛ ۲) ببلتون، ببلوالي؛ ۳) پرېکړه، فیصله؛ ۴) غوڅونه؛ ۵) اختلاف.

**پرېکونه** (prekawána) ښځ.م. غوڅونه، لنډونه.

**پرېکوڼ** (prekuṇ) نر.م. ۱) سرټړونی، سربند؛ ۲) بچوکی؛ ۳) انګر، د کور او حویلی غولی.

**پرېکه** (préka) ښځ.م. ۱) وګ. پرېکړه؛ ۲) ف. مطلق امر (غوڅ کړه!).

**پرېکېدل** (prekedál) مص. مت. ۱) غوڅېدل، قطع کېدل؛ ۲) شلېدل، څیرې کېدل؛ ۳) فیصله کېدل، ختمېدل؛ ۴) کیندل، کنستل.

**پریم** (prim) نر.م. (ج. پریمونه) د نس پرده، برنغ، د خېټې پرده، پرین.

**پرېم** (prem) نر.م ۱) مینه، محبت؛ ۲) فریم، چوکاټ حلقه، دعینکو چوکاټ؛ ۲) دانچه.

**پرېمان** (premán) ص. نر.م. ۱) پرېمانه، ډېر زیات؛ ۲) اباد، ښېرازه.

**پرېماني** (premānī) ښځ.م. زیتوالی، بروالی.

**پرېمشتل** (premaštál) مص. ل. پرېمل، مېشت کېدل، مشتېدل، اوسېدل، مېشته کېدل.

**پرېمل** (premál) مص. ل ۱) اوسېدل، مېشت کېدل، پرېمشتل؛ ۲) مص. مت. ځای نیول، قبضه کول لاس ته راوستل، لاندې کول.

**پرېمن** (premán) ق. په ډاډه، په اطمینان، په تسل، په مزه، په خوند، په خوښی.

**پرېمینځل** (preminźál) مص. مت. ۱) مینځل، وینځل، پرېولل؛ ۲) لمبول.

**پرین** (prin) نر.م. ۱) پریم، دنس پرده، دخېټې پرده ۲) د کوچنیانو یو ډول لوبه.

**پرینځل** (prinźál) مص. مت. وګ. پرېمینځل.

**پریند** (prind) نر.م. پرین، پریم، برنغ، د نس پرده.

**پریڼ** (paryaṇ) نر.م ۱) بندوبست، سرشته، تنظیم؛ ۲) جوړښت، سلا، مشوره.

**پریڼی** (paryaṇáy) فا. نر.م. ۱) ترتیبوونکی، سرشته کوونکی؛ ۲) پوه ، هنرمند.

**پرېو** (prew) نر.م. مرید، منونکی، دچا په پله پسې تلونکی، تعقیبوونکی.

**پرېوان** (prewān) ص. نر.م. وګ. پرېمان.

**پرېواني** (prewānī) ښځ.م. وګ. پرېماني.

**پرېوت** (prewát) نر.م. لوېدیځ، مغرب، لمر پرېواته.

**پرېوتل** (prewatál) مص. ل. ۱) څملاستل، غځېدل، ویده کېدل؛ ۲) غورځېدل، راګوزارېدل، لوېدل؛ ۳) ډوبېدل؛ ۴) ډېره کېدل؛ ۵) یرغل کول؛ ۶) پانې توېدل؛ ۷) نړېدل؛ ۸) په سوداګرۍ کې تاوان؛ ۹) ناکامېدل؛ ۱۰) ناروغېدل.

**پرېولل** (prewlál) مص. مت. وګ. پرېمنځل.

**پرېولنه** (prewlána) نر.م. پرېولنګ، پرېمینځنه، پاکوله، [illegible]

**پرېوينځل** (prewinźál) مص. مت. و گ. پرېمنځل

**پرېياسته** (preyāstá) نر. ج. ۱) شملونه، ويده کونه؛ ۲) راکښته کونه، پرېباسنه، راکوزونه؛ ۳) غځونه، اوږدونه، کښکونه.

**پرېيستل** (preistál) مص. مت. ۱) پرېباسل، غځول، ويده کول؛ ۲) راکښته کول، راکوزول، راغورځول، راڅول.

**پرېښتل** (preiṣtál) مص. مت. پرېيستل.

**پرېښي** (preiṣáy) صف. نر. م. (ج. پرېښي) خوشې شوی، پرېښودل شوی، ترک شوی، ازاد شوی، خلاص شوی، ترک کړی.

**پړ** (páṛ) ص. نر. م. (ج. پړه) ۱) ملامت، ګرم؛ ۲) مغلوب؛ ۳) بند؛ ٤) نر. م. کانېزه ځمکه؛ ٥) قمارخانه؛ ٦) پُل.

**پړاپه** (pṛāpá) ښځ. م. (ج. پړاپې) ببغه، ببوغه، کورکورۍ، کرکورۍ، کنميره، کورکوته.

**پړاته** (paṛātá) ښځ. م. (ج. پړاتې) و گ. پراته.

**پړاخ** (pṛāx) ص. نرم. ج. پراخ، ارت، پلن، ببرته.

**پړاخ پزی** (pṛāxpázay) ص. نر. م. پلن پزی، د پلنې پوزې خاوند، پوزور، پيت پزی.

**پړاس** (pṛās) نر. م. کړس، تک، پړک، ښپېره.

**پړاکی** (pṛākay) نر. م. (ج. پړاکي) بدخويه سړی، قهرجن سړی، بې حوصلې سړی.

**پړان پس** (pṛānpás) نر. م. کرپش، کته پيش، ګوتړک.

**پړانګ** (pṛāng) نر. م. يو ځيرونکی ځناور دی.

**پړانګ پيش** (pṛāngpiś) نر. م. غرنی پش، پيشو پړانګ، نيمچې سارانی پيشکه.

**پړانګه** (paṛānga) ښځ. م. ۱) خرخوری، ځيرانګه، چېرو، د زړې توتې چيری؛ ۲) کرښه، ليکه، خط؛ ۳) د پړانګ مونث.

**پړانه وړانه** (pṛānawṛāná) ښځ. م. ۱) پېره وره، ګرمه ناګرمه، حق ناحق؛ ۲) شرط، جواري.

**پړاو** (paṛāw) نر. م (ج. پړاونه) رباط، منزل، تکانه، تيسن، تم ځای.

**پړپوس** (paṛpūs) نر. م. (ج. پړپوسونه) ۱) سپری، پپوس؛ ۲) بېکاره سړی؛ ۳) دوس، دله.

**پړت** (pṛát) نر. م. ۱) پرستن، شيرک؛ ۲) په دام کې د نښتي مرغۍ د وزرود ښورېدلو اواز، پرتېدل.

**پړتاوول** (paṛtāwawál) مص. مت. نسکورول، پرغول، راځملول، راګوزارول، راغورځول.

**پړتاوېدل** (paṛtāwedál) مص. ل. غورځېدل، ګوزارېدل، نسکورېدل، پرځېدل.

**پړتوب** (paṛtób) نر. م ۱) پړتيا، ملامتيا، پړوالي، ګرمتيا؛ ۲) مغلوبيت، مغلوبېدنه.

**پړتوګ** (paṛtóg) نر. م. (ج. پړتوګونه) پرتوګ.

**پړته** (paṛtá) ښځ. م. ۱) پړکه، لېندکی، کيکری، دمرغيو دنيولو اله؛ ۲) چيندښتکړو.

**پړتيا** (paṛtyā) ښځ. م. (ج. پړتياوې) ګرمتيا، ملامتيا، ګرموالي، پړوالي.

**پړتېدل** (pṛatedál) نر. م. پورته پورته غورځېدل.

**پړچتی** (paṛčátay) ښځ. م. ربکی، رپ، چنې، په دېوال کې د لوښي اېښودلو ځای، تاقچه.

**پړخ** (pṛáx) نر. م. تک، تق، پړک، پړق، د تمانچې دزا او د ښپېرې اواز.

**پړده** (paṛdá) ښځ. م. (ج. پړدې) و گ. پرده.

**پړده** (puṛdá) ص. نب. ۱) مسوول، ذمه وار؛ ۲) باوري، يقيني.

**پړده پوښ** (paṛdapóś) نر. م. رازساتونکی، پرده ساتونکی، معتمد، عيب پټوونکی.

**پړسبن** (pṛasabán) ص. نر. م. سست، پړسېدلی، پړسبن لاڅادړک، پړسيد، پوښن، پړسوښ

**پړسمن** (prasmán) ص. نـر.م. ١) پړسېدلی، ډډ شوی؛ ٢) پوست، سست؛ ٣) نابوده، بې څې، بې کاره؛ ٤) سور، ناراست، لټ، تنبل.

**پړسنده** (parsánda) ص. نب. ١) پړسېدلی، ډوسه، ډډ؛ ٢) پړسولی، له غوسې نه ډډ؛ ٣) ورروست.

**پړسوب** (parsób) نـر.م. پاړسوب، تنډوالی، ډډوالی، ډډون، پړسېدنه.

**پړسوبن** (parsohán) ص. نر.م. ډډ شوی، پړسېدلی.

**پړسول**(١) (parsawál) مص. مت. ١) ډډول، تنډول، پاکول؛ ٢) قهرول؛ ٣) بلاربول؛ ٤) بنه وهل.

**پړسول**(٢) (prasawál) مص. مت. ١) پړ کول، په ښیره وهل؛ ٢) چول، چاودل.

**پړسونګا** (parsūngā) نر.م. پړسېدلی، خښتور.

**پړسونګی** (parsūngay) نر.م. پړسېدلی سری، ډډ بد سری.

**پړسېدل**(١) (parsedál) مص ل ١) ډډېدل، تنډېدل؛ ٢) قهرېدل، غوسه کېدل؛ ٣) حامله کېدل.

**پړسېدل**(٢) (prasedál) مص. ل. ١) پړقېدل، وهل کېدل؛ ٢) چاودېدل، درز کېدل.

**پړغشه** (parğáša) نبغ.م (ج. پړغشې) ګنده، بګه، بډه، لال ګنده.

**پړک**(١) (prák) نر.م. ١) تک، ښیره؛ ٢) ځلا، ځل، د رڼا ځریکه؛ ٣) د سترګو په رپ کې، لږ وخت.

**پړک**(٢) (park) نر.م. ١) د خلکو یوه وړوکې ډله؛ ٢) د پسو وړه رمه؛ ٣) ریږدبدا؛ ٤) همزولتیا؛ ٥) د پېیلو مرغلرو لړ؛ ٦) د لمنځې لړګی؛ ٧) د دم د چړې د تېرې کولو څرمن.

**پړکا** (prakā) نبغ.م ١) ځلا، رڼا، برېښنا؛ ٢) تکا، تقا، د ښیرو اواز.

**پړکمشر** (parkmašár) نـر.م. (ج. پړک مشران) پړوګی، خیر د ضابط.

**پړکول** (prakawál) مص. مت. ١) پړقول، ځلول، پرېښول؛ ٢) وهل؛ ٣) آواز ایستل، چکچک.

**پړکه** (parká) نبغ.م. (ج. پړکې) پتکه، کېکړی، د مرغیو د نیولو اله، لومه یا بېتلی.

**پړکهار** (prakahār) نر.ج. تکهار، تقهار.

**پړکی** (párkay) نـر.م. ١) پنډی، لینګی، ساق، لنګی؛ ٢) د ښکار بوتی، تورګار.

**پړکۍ** (parkáy) نبغ.م. ج. بتکۍ، پړکه، ګرګه، د مرغیو د نیولو آله.

**پړکېدل** (prakedál) مص. مت ١) ځلېدل، برېښېدل، پړقېدل، ځلغېدل؛ ٢) مص. ل. ریږدېدل، ربېدل، لړزېدل، ترېدل، پرېدل، دګېدل.

**پړم** (prám) ص. نر.م. و ګ. پړن.

**پړمبۍ** (prambáy) نبغ.م. ج. ١) پمبرۍ، تناکه، پولۍ؛ ٢) داوبو د سر پوکانۍ، ډومبک، حباب.

**پړمخ** (parmáx) ق. پړمخ پرېوتی، پړمخ پروت، نسکور، پړمخې، اپوته.

**پړمخې** (parmáxe) ق. پړمخ، په مخ پرېوتی، پړمخ پروت، نسکور پروت، اپوته پروت.

**پړمخی** (parmáxay) نر.م ١) برغولی، د کټوې خاورین سرپوښ؛ ٢) ص. نر.م. اپوته.

**پړنګ** (práng) نر.م. ج. ١) د ژړا اول غږ، برېنګ؛ ٢) ص. نر.م. بې جرئته؛ ٣) جذام، خراره، یو ډول بده ساري ناروغي ده.

**پړنګا** (prangā) نبغ.م. (ج. پړنګاوې) ١) ژړا، پړنګ؛ ٢) تنګا، پنګا، چنګا، ډنګا.

**پړنګن** (prangán) ص. نر.م. ژړن، چنګن، برنګن، پړنګن.

**پړنګول** (prangawál) مص. مت. ژړول، برنګول.

**پړنګی** (prángay) صف. نـر.م. (ج. پړنګي) په خراره یا جذام نیولی.

**پرنګېدل** (prangedál) مص. ل ١) اړېدل، حېرېدل، برنګېدل، پرنګېدل.

**پرنه** (prána) ښځ. م (ج. پرنې) ملامتيا، ملامتوالی، پړه.

**پرنه ورنه** (pranawrána) ښځ. م. پړه ګالل، ګرمه منل، ملامتيا منل.

**پروالی** (parwā́lay) نر. م. ګرموالی، پړتوب، ملامتوالی، ګرمتوب.

**پروپی** (prū́pay) نر. م. (ج. پروپي) ١) څلورمه برخه، کوروی، پاو، چارک؛ ٢) ښځ. م. د وزن يوه پيمانه، د وروي شپاړسمه برخه.

**پروستي** (prósti) ښځ. م. ١) پله، پلې، غوړګی؛ ٢) پولی، د جوارو پولی.

**پروکی** (١) (prūkáy) نر. م. (ج. پروکي) ١) الړ؛ ٢) مصرع، د شعر برخه؛ ٣) غيرناره؛ ٤) توته، د لرګي توته.

**پروکی** (٢) (parū́kay) نر. م. ١) وړه رمه، د پړک تصغير؛ ٢) کندي، وړه بياسته، لنډ پړی.

**پروکی پروکی** (prokayprókay) ص. نر. م. لړلړ، توتې توتې، برخې برخې.

**پړول** (parawā́l) مص. مت. ملامتول، ګرمول، مغلوبول.

**پرومبه** (prombá) ښځ. م. (ج. پرومبې) چيچړنه، چيچړه، د نګره غوښه، خرابه غوښه.

**پرومبې** (prómbe) ښځ. م. د پنېر يا مستو شنې اوبه، د پوڅي شنې اوبه.

**پروند** (parwánd) ص. نر. م. غښتلی، قوي، کلک، ټينګ، پلوند، مضبوط.

**پرونی** (parū́nay) نر. م. (ج. پروني) زروکی، ټيکری، پړونی (د ښځو څادر).

**پړه** (٥) (prā́) ښځ. م. ١) ملامتي، ګرمتيا، مغلوبوالی؛

٢) ص. ښځ. م. ملامته، د پړ مؤنث؛
٣) نر. م. ج. د پړ جمع.

**پړه تکي** (praṭáke) ښځ. م. ١) الټکي، لغتې وهنې، پوناکې؛ ٢) لوڅې پوڅې.

**پړی** (páray) ص. نر. م. (ج. پړيان) ١) جوارګر؛ ٢) د قمار خانې مشر؛ ٣) نر. م. بياسته، رسی.

**پړۍ** (paráy) ښځ. م. ١) د کانو، ګټو داسې ايښودل چې لس لس فوټه يې اوږدوالی او پلنوالی اوږ فوټ يې جګوالی وي؛ ٢) لرګي، تيرې او بوجې چې سر په سر کېښودل شي.

**پړۍ پړۍ** (parayparáy) ق. کتار کتار، قطار قطار، سر په سر (بوجې او لرګي).

**پړيت** (prit) ص. نر. م. ١) له ډاره غلی او پټ شوی؛ ٢) پيټ، چيټ؛ ٣) نر. م. د الوتلو په وخت کې د مرز د وزرونو اواز.

**پړيخ** (prix) ص. نر. م. ١) چيټ، پيټ، پړيټ؛ ٢) چينګ، چينګ، چينګ خولی.

**پړيخ پزی** (prixpázay) ص+نر. م. چيټ پوزی، پلن پزی، چيټ پزی، پيټ پزی.

**پړېدل** (paredál) مص. ل. ١) ملامتېدل، ګرمېدل؛ ٢) مغلوبېدل؛ ٣) بې ځايه غړېدل؛ ٤) لړزېدل.

**پړيس** (pris) ص. نر. م. پلن، پړيخ، بې ډوله، تيس، بدشکله، بې ډوله (مخ).

**پړيم** (prim) ص. نر. م. پړيم، لخته شوې وينه، يخه وينه، کلکه وينه، پرنډه وينه.

**پړين** (prin) ص. نر. م. ډېر خوږين، زيات پوخ، له وخته تېر، خوږين پړين، خوږت پړت.

**پړينګ** (pring) نر. م. ١) چينګ، د ژړا د پيل اواز؛ ٢) هغه سپينه ماده چې د بچي له پيدا کېدو څخه مخکې له غوا څخه راوځي؛ ٣) د کولمو د پاسه د غوښې يوه کلکه برخه.

**پرینګهار** (pṛingahā́r) نر.م. چینګهار، د ژړا د پیل اواز.

**پري والا** (paṛiwālā́) ص.نر.م ۱) رسی پلورونکی ۲) پنډي، جوالي، کلي، حمال.

**پز څپوني** (pazcapūṇáy) ص.نر.م. د پزي څپوني، د پوزي دستمال.

**پزغمی** (pazǧámay) نر.م. تیک، چرګل، خلي، مېخک، مېخکی، د ښځو د پزي ګاڼه ده.

**پزول** (pazawә́l) مص.مت. ۱) بزول، بدکاري کول، بد فعلي کول؛ ۲) داړول، بېرول، وېرول.

**پزوهل** (pazwahә́l) مص.مت. په نشتر وهل، وينه کښل، رګ وهل.

**پزه** (pazá,a) ښځ.م. پوزه، تمبزی، پیزه، سرمه.

**پزی** (pázay) نر.م (ج.پزي) ۱) بوی، وږم؛ ۲) ښځ.م. چاغوالی، ځوربوالی، غټوالی.

**پزېدل** (pazedә́l) مص.مت. ۱) جوشېدل؛ ۲) ژوېلېدل؛ ۳) مص.ل. ترېدل، پزېز کول.

**پزیز** (páziz) نر.م. پزني، هغه آواز چې په پوزه ادا کېږي.

**پزین** (pázin) ص.نر.م. له پوزي نه جوړ شوی، له مزري نه جوړ شوی شی، له انډېري سره اړوند.

**پژرکی** (pažárkay) ص.نر.م. ۱) بېرګی، قهرجن، حملي ته تيار؛ ۲) خپه، ژر خپه کېدونکی.

**پژواک** (pažwā́k) نر.م. ۱) ازانګه، انګازه، انګی، د غږ غبرګېدنګ؛ ۲) د یوه ګل نوم؛ ۳) یو افغاني سیاستپوه، شاعر او لیکوال چې نوم یې عبدالرحمن و.

**پژی** (pažáy) نر.م. (ج.پژی) پیی، ځان، جثه، تنه او بوده، قواره، اندام.

**پژل** (pažә́l) مص.مت. تراشل، تورل، تراشول.

**پږوی** (paẓwáy) نر.م. (ج.پږوي) د تنستي یو سر او بل سر ته لګېدلی لرګی.

**پږی** (paẓáy) نر.م. ۱) وګ.پږی؛ ۲) لبچه، لبځه، د لاس یوه برخه.

**پس**[1] (pás) ق. بیا، وروسته، پس له دي، له دي وروسته، ناوخته، پس ته، شړ ته؛ ۲) اد.تو.

**پس**[2] (p(a,u)s) نر.م. ۱) انري غږ؛ ۲) پسکی، له معدي نه د هوا خارجېدل.

**پسات** (pasā́t) نر.م. فساد، شر، پساد.

**پساتي** (pasā́ti) ص.نر.م. فسادي، شري، وران سری، شیطان.

**پساري** (pasā́ri) نر.م. هغه دوکاندار چې بادیان، اربېږه، سپېرکی، او... خرڅوي.

**پساله** (pasālá) نر.م. ګاڼه، زیور، پسول، کالی.

**پساڼ** (pasā́ṇ) نر.م. بلور، د بلور کاڼي، نوزی، د خرخ کاڼي، د چړې د تېره کولو ګرده ډبره.

**پساڼی** (pasā́ṇay) ص.نر.م. پښتنی، پخاني، لړ، کم، خخوری، ښنی، خسنی.

**پساو** (pasā́w) نر.م. ۱) پاتې شوي ښوروا؛ ۲) هغه څښکه چې ترټولو په آخر اوبه کېږي؛ ۳) مغزاوه هغه اوبه چې یو وار جامي په کې پرېمنځل شي او بیا نوري جامي په کې خښتي کړي.

**پس پسی** (paspásay) نر.م. پسپسنه، د شونډو په سر خبري کول، په غوږو کې پټي خبري.

**پست** (pást) ص.نر.م. ۱) کښته، لاندي، ټيټ، کوز؛ ۲) رذیل، بې وجدانه، د بدو اخلاقو خاوند.

**پستاندار** (pistā́ndā́r) ص.نر.م. تې لرونکی، غولانځ لرونکی، شیدي ورکوونکی.

**پستکی** (pastákay) نر.م. ۱) بوسغی، پوخکی، ۲) د ...

**پستکی** (pastákay) ښخ.م ۱)پخکی، پوخکی، پستوکی؛ ۲) هر نرم شی.

**پستنه** (pastána) ق. ۱)بېرته، بیا راگرځېدل، راستنه، جاروتل، واپس، په وروستو؛ ۲) ښځ. مج. شاته تلنه، قهقهرایي؛ ۳)قی، کانګې.

**پستو** (pastū́) نر.م. ۱)پس‌خونه؛ ۲)د پاچا یا آمر هغه سامان چې د هغه له روانېدو څخه وروسته وریسې ورل کېږي.

**پستوالی** (pastwā́lay) نر.م. ۱)پوستوالی، نرموالی؛ ۲) تیټوالی، لاندې والی.

**پستور** (pastawár) نر.م. پسته‌وور، نرم باران، نري څاڅکي، ښورمک، نرمه شیګره.

**پستورګی** (pastwárgay) نر.م. هغه پسه چې نرمې او پستې ورۍ لري.

**پستوړه** (pastūṛá) جن. پاسته اوره، نرم اوړه، ترمېده، نرمه دوړه، مېده اوړه.

**پستوکی** (pastū́kay) نر.م. ۱) د غوړ نرمی، بوستې؛ ۲)پوستوکی، خرمن، پوست.

**پستول** (pastawál) مص. مت. ۱) مېده کول؛ ۲)نرمول؛ ۳) ښه وهل، ډبول، ټکول.

**پسته**[1] (pastá) ښځ.م ۱)نرمه، ملایمه؛ ۲)د پنډۍ غوښه؛ ۳) ق. پس ته، بیا، وروسته، بل وار، بله پلا؛ ٤)نر.م. بېرته شه! بېچ شه، پس شه.

**پسته**[2] (pistá) ښځ.م. وچه مېوه ده چې دانې وړې او چغزې یې زرغون رنګ لري.

**پسته وور** (pastawū́r) نر.م. ۱) نرم باران، نري باران، ښورمک؛ ۲) شبنم.

**پستي** (pásti) ص. ښځ. م. ۱)ټیټوالی، لاندې والی، ښکته والی؛ ۲)ذلیلتوب.

**پستې** (pasté) ښځ.م.ج ۱) کنګۍ ژبه، حلقي ژبه، وړه ژبه؛ ۲) د پست جمع، نرمې.

**پستېدل** (pastedál) مص. ل. ۱)نرمېدل، مېده کېدل؛ ۲) وهل کېدل؛ ۳)خبرې ته راضي کېدل

**پسخاک** (pasxā́k) نر.م. غم، ټول، پرېشاني، فکر، کړاک، زړه خوړل، اندېښنه.

**پسخند** (pisxánd) نر.م(ج. پسخندي) ریشخند، پېښاره، ملنډې، مسخرې.

**پس خورده** (pasxordá) ص. ښځ.م ۱)پاته شونې، جوټه، پاتې شوی خوراک؛ ۲)کنګړ، کنګر.

**پسخول** (pasxwál) مص. مت. ۱)په غوسه کول، قهرول، تحریکول؛ ۲)نر.م. د اړې بوره؛ ۲)ګیچه، څڅبوکی، زوږل، زوول، توقاله.

**پسخه** (pasxá) ښځ.م. (ج. پسخې) و ګ. پخسه.

**پسرلنی** (pasarlánay) ص. نر.م. د پسرلي، د پسرلي مربوط.

**پسرلنۍ** (pasarlanáy) ښځ.م. ۱)د پسرلي اړونده بولله(شعر، قصیده)؛ ۲)دپسرلي مربوطه.

**پسرلی** (pasárlay) نر.م. (ج.پسرلي) خرمونی، خرمنی، سپرلی.

**پسرو** (pasráw) ص. نر.م. ۱)وریسې تلونکی، تعقیبوونکی؛ ۲) نر.م. پسګویي، غیبت.

**پسکاوڼ** (paskāwáṇ) ص. نر.م. پسکڼ، پسڼ، تسڼ، تسکڼ.

**پسکاونه** (paskāwaṇá) ښځ.م. ۱)د پسکاوڼ دکلیمې مؤنث؛ ۲)د الوبالو په څېر یوه ونه ده.

**پسکه** (paská) ښځ.م. ۱)ورسته، ورسته بهډۍ؛ ۲)هر ښځینه وروست شی؛ ۳) پسکې.

**پسکی** (pusákay) نر.م. پس پس، پس پسی، په غوږ کې خبرې، پټې خبرې.

**پسکۍ** (paskáy) ښځ.م.ج. پسکه، تس.

**پس منظر** (pasmanzár) نر.م.شالید، تاریخي سیر، پخوا ته نظر کونه.

**پسندی** (psánday) نر.م. د سپینتو لوبه.
**پسنی** (pásnay) نر.م. (ج.پسني)و گ. پسوني.
**پسوا** (paswá́)ق. پسي شا، شاته، په غياب کې.
**پسور** (pasór) نر.م. سور، بر، لنهوالي، پهلندو، پلنوالي.
**پسورور** (pasorawár) ص.نر.م. سورور، پلن.
**پسول**[۱] (pasól) نر.م. گانه، زيور، گينه.
**پسول**[۲] (pasáwəl) مص. مت. ورو ورو غـوړول، غلي غلي په خبرو راوستل.
**پسول**[۳] (pusáwəl) مص.مت.څکول، په سگريټ، چلم، او پايپ باندې د خړو سکو جوړول.
**پسولل** (pasolál) مص. مت. سينگارول، ښکلل، گاڼل، ښايسته کول، دولي کول، پسولول.
**پسولېدل** (pasoledál) مص. ل. دولي کېدل، ښايسته کېدل، ښکلي کېدل.
**پسوني** (pasū́nay) نر.م. ۱) په کندې کې ناست، په خوکۍ کې ناست؛ ۲) مورچل، خڅه، خزه، څوکۍ، څارځای، کمين، څوځای.
**پسه**[۱] (psá́) نر.م. (ج. پسونه) ۱) گډ، مېږ، نروز؛ ۲) ص. نر.م. ساده، ناپوه.
**پسه**[۲] (pása) ق. ۱) وروسته، پسته، له دې پسه، له دې وروسته، بيا؛ ۲) ښځ. م و گ. پسکه.
**پسهار** (pashā́r) نر.م. پس پسي، پټې خبرې.
**پسي** (psi) ص. نب. مغرور، متکبر، کبرجن.
**پسې** (páse) ق. ۱) وروسته، ورپسې، څېرمه، شاته؛ ۲) ښځ.م.ج. ککرۍ، پسه، هغه زېږۍ چې د کوز د خاوند له خوا شپانه ته دوري د پيدا کېدو په وخت کې ورکوي؛ ۲) د نجلۍ د پيدا کېدو په مناسبت شيريني.
**پسېدل** (pasedál) مص. ل. ۱) پس پس کول، پټ پټ غږېدل، سوکه سوکه غږېدل؛ ۲) پخېدل.

**پسېره** (pascrá) ق. پرسېره، برسېره.
**پسې شا** (pas(e,i)šá́) ق. پشـلا، پسـوا، په نا موجودگۍ کې، په غياب کې.
**پسين** (pasín) ص. نر.م. وروستنی، آخرنی.
**پسينه** (pasiná́) ص. نب. ۱) وروستنی، آخـرنی، له ټاکلي وخت څخه وروسته کـرل شوی فصل؛ ۲) افکس، سيفيکس، په گـرامرکې د کليمې منځنې او وروستنې زروستاړی.
**پسيه** (pasyá́) ښځ.م. (ج.پسيې) بُسری، پسه، د وري يا ورغـومي د پيدا کـېدو له امله د رمې د خاوند له خوا شپون ته انعام ورکول.
**پش**[۱] (pǎ́š) نـر.م. (ج.پشيان) غـورپش، نرپش، پشی، پشک، د پيشو مذکر شکل.
**پش**[۲] (paš̌) نـر.م. ۱) پښ، پښهـار، د باد اواز، د مار اواز؛ ۲) د اور لمبې، د لمبو غرهار.
**پشار** (pašā́r) نر.م. (ج.پشارونه) پيروی، ملايي، قيماق، قيماغ، ارياش، رش.
**پشت**[۱] (pušt) نر.م. (ج.پشتونه) ۱) د چرگې شو، ديوې چرگې د هگيـو له شروع څخه ترکوړکېدو پـورې دوره؛ ۲) د چـرگې په ډونگه کې د هگيـو ځای؛ ۳) شا، څټ؛ ٤) نسل، خاندان، کورنۍ؛ ٥) پېړۍ؛ ٦) د بيالې پشت، د کاريزه پشت.
**پشت**[۲] (pášt) نـر.م. پشـته، پيشی، پشـې شبه، د پيشو يا بليکۍ د شرلو اواز.
**پشته** (puštá́) ښځ.م. (ج. پشتې) ۱) بند، تـوکر، د سېلاب د مخنيوي لپاره مانع يا خنډ؛ ۲) وقايه، مقـوا د کتاب پوښ؛ ۳) د غره ډډه، د غونډۍ ډډه.
**پشتي** (pušti) ښځ.م. (ج.پشتي گانې) ۱) تکيه، سرويرېدی؛ ۲) هغـه دېـوال چې د زاړه دېـوال د کلکوالي لپاره جوړېږي.

**پښتی** (pištáy) نـر.م. (ج.پښتي) پاپې گک، چینې گک، یو کوچنی سپی.
**پښخل** (pašxál) نـر.م. گنگخیړ، نمږه، وړی، خڅلی، تیه‌وړی، گنگخړی، خس و خاشاک.
**پښ غوره** (pašgwáza) ص. ښځ.م. سپین غوړي وزه.
**پښقاب** (pišqáb) نر.م(ج.پښقابونه) پرچ، غاب، تالبکی، بشقاب، رکیبی.
**پښک** (pišák) نـر.م. بونی، سپونی، سپیلومی، پیښک، برص.
**پښکال** (pašakál) نر.م. و گ. بشکال.
**پښکالی** (pašakāláy) ص. نب. د پښکال، هغه وابنه چې په پښکال کې راشنه کیږي.
**پښکالۍ** (pašakāláy) ښځ.م. ج. پلش، بارانی، برساتی، د باران کوټ.
**پښکنډی** (piškandáy) نـر.م. (ج. پښـکنډي) ۱) پښنگوری، د پښې بچی؛ ۲) د کوچنیانو یوه لوبه ده.
**پښکه** (páška) ښځ.م. (ج.پښکې) داره، پلېښه، پلېښکه، د مایعاتو (یا وینې) داره.
**پښلا** (pašalá) ق. پسې شا، په غیاب کې.
**پښلره** (pašlára) ښځ.م. اخنک، پیشتری، یو ډول گیاه یا سابه.
**پښم** (pašám) نر.م. ۱) نری باران، نبورمک، شوغ، پرخه؛ ۲) ډېر نری وښته؛ ۳) وړی.
**پښمکه** (pašmáka) ښځ.م. (ج. پښمکې) زمی، یو ډول بوټی دی چې جامې پرې مینځي.
**پښلی** (pašáláy) نر.م. په کاچوغې (قاشقې) سره تارونه مایعات سړول، د تودو اوبو سړونه.
**پښمی** (pašmáy) نر.م. جونگی، جونگ، د اوښ بچی، د اوښ کاږی.

**پښنگ** (pišáng) نر.م. هغه کچر، خر یا آس چې د کاروان په سر کې روان وي.
**پښنگوری** (pišangúray) نـر.م. پښکوتی، پیشونگری، د پشي بچی، پښنگر.
**پښواز** (pišwáz) نر.م. ۱) جامن، ختایي. خلکی، د بازینگر د گڼا جامه؛ ۲) یو ډول کمیس.
**پښوپړۍ** (pišopŕáy) ښځ.م. یو ډول توپ بازي.
**پښوگی** (pišogáy) نـر.م. (پښوگي) پیشوگی، نریش، د پښي بچی، پښنگوری، پښکوتی.
**پښول** (pašawál) مص. مت. پښول.
**پښونډک** (pasondák) نر.م. پشانډوک، غل، هغه سړی یا هلک چې وړې وړې غلاوې کوي.
**پښه** (páša) ښځ.م. ۱) پیشو، پیشی؛ ۲) پشې پشتې، پیشته، د پیشو د شړلو اواز
**پښی** (pášay) نر.م(ج.پښي) ۱) یو ډول لوبه ده؛ ۲) پیشو؛ ۳) غونجی، لنډغوری سیرلي.
**پښې** (páše) ښځ.م. پیشته، پیشتې، پیشې، د پیشو د شړلو آواز.
**پښۍ** (pašáy) ښځ.م. ج. ۱) پیشو، پیشي؛ ۲) یو ډول خزنده ده چې په کرنیزو ځمکو کې پیدا کیږي؛ ۳) هغه غنم، چنې چې نیني کیږي.
**پښېدل** (pašedál) مص. ل. و گ. پښېدل.
**پښېرلی** (pašerláy) نر.م. یو کلن سېرلی.
**پښې شا** (pašešá) ق. و گ. پسې شا.
**پښ**[1] (pás) نر.م. اهنگر، لوهار، آیینگر.
**پښ**[2] (pus, pas) نر.م. پش، د مار آواز، د غوايي ښاري، د باد غږ.
**پښانگه** (pašāngá) ښځ.م. د مشک ښانگه، د ژي ښانگه، ښانگه، دغړکې پښه.
**پښنبني** (pasbanáy) ښځ.م. (ج.پښنبني) د پښې، د لوار ښې (...)

**پښت** (pást) نـر.م. ۱) پشت، خېل، ټبر، پښه، ريښه، نسل. ۲، سېرى. ۳) ستـو. نيم ځـامي اوربشي يا غنم ميي او بيـ ميده شي نوررو ستـه گوره يا بوره ورسـره گډه شـي؛ خـوارۀ خواړه شي جوړيږي. گوړداني او ستوان يې هم بولي.

**پښتنواله** (paștanwālá) ښـځ.م. پښتـونوالـه، پښتـونولي، پښتـو، پښتني خـويونه، پښتني اخلاق.

**پښتني** (paștáni) ص. نب. د پښتنـو، د پښتـون، په پښتو برابر د پښتنو له دود دستور سره برابر

**پښتو** (paștó) ښځ.م ۱) پښتـو ژبه؛ ۲) پښتـنواله، پښتونـولي؛ ۳) مـج. حـود، تـوري، ميـړانې؛ ٤) د يوې مجلې نوم چې لـومړى ځـل په ۱۳۱۱ کال کې د کندهار د پښتو انجمن د خپرنيز اورگان په توگه راووتـله، اوس د افغانستـان د علومو اکادمۍ د پښتو څېړنو مرکز نشـراتي اورگان دى؛ ۲) د پښتو په نامه په کوزه پښتونخـوا کې هم يوه مجله خپرېـږي.

**پښتوپانگه** (paștopāngá) ښـځ. م. ۱) پښتو زېرمه، پښتو ذخيره؛ ۲) د يوه کتاب نوم.

**پښتو پښويه** (paștopașoyá) ښځ. م. د پښتـو گرامر، د ژبې قواعد؛ د يوه کتاب نوم دى.

**پښتو اکاډمي** (paștoakādumi) نر.م ۱) و.گ. پښتو ټولنه؛ ۲) په پېښـور او کـوېټـه کې د دوو بېلا بېلو علمي څېړنيزو مؤسسو نوم دى.

**پښتو ټولنه** (paștoțolána) ښځ.م. پښتـو انجمن، دا ټولنه په نـرى کې د پښتـو اکاډمي په نـامـه پېژندل شوې وه، په ۱۳۱٦ ل کال کې د کابل د ادبي انجمن او د کندهار د پښتـو ادبي انجمـن د ادغـام په پايله کې منځ ته راغلـه چې اوس د علومو په اکاډمۍ کې د يـوه انسـتيټوت په

سطحه فعاليت کوي.

**پښتورگی** (paștawórgay) نـر.م. بډوگـی، بډوډی.

**پښتو ژبی** (paștožábay) نر.م. (ج. پښتوژبي) هغه څوک چې ژبه يې پښتـو وي.

**پښتو سيند** (paștósind) نر.م. پښتو قاموس، د يوه قاموس نوم دى.

**پښتو مرکه** (paștomaráka) ښځ.م. هغه علمي مؤسسـه وه چې د امـان الله خـان د واکمنۍ په لومړيو وختو کې تأسيس شوه.

**پښته** (pușta) ښځ.م. (ج. پښتې) ۱) د تاکو پشتې، د پالېزه پښتې؛ ۲) غونډۍ، تپه.

**پښتی** (paștáy) ښـځ.م.ج. ۱) هغه نرۍ هـډوکي چې د سينې قفس يې جـوړ کـړى دى؛ د کتاب پښتۍ؛ ۲) دخنگ تکيه (بالښت).

**پښتېدل** (pușțedál) مص.ل. و گ. پوښتېدل.

**پښکی** (pușkáy) نـر.م. د مـار، د بنۍ، د بـاد د جريان او د باد د چلېدو اواز.

**پښلي** (psáli) ښـځ.م. مـاسې، هغه جـرابې چې د څرمنې پوښ ورا چولې شوى وي.

**پښلی** (pușálay) نر.م. (ج. پښلي) پايل، پايزېب، پښې زېب، پښولی، پيزېب.

**پښ مار** (pașmár) نر.م. بنۍ وهونکی، دم کوونکی هغه څوک چې سکاره تازه کوي.

**پښندی** (psánday) نـر.م. ۱) پښولی، پښـوندی؛ ۲) زولنه، بېړی، دوېک.

**پښنگه** (psangá) ښځ.م. دوه خانبي، دوه غاښي سکو، هغه آلـه چې د هغې سـره د درمنده لـواړ غنم او اوربي يا غوزان پرې شينډي.

**پښوکي** (pașúki) ښـځ.م. هـغه جـورابي چې د پښې پښې ځای نيولی

**پښول** ( paṣawál ) مص. مت. ۱) د مار یا غوا پښ پښ؛ ۲) لوهار په بنی اواز یا باد ایستل؛ ۳) په غوسه کول، قهرول.

**پښولی** ( paṣũlay ) نر.م. (ج. پښولي) پایزېب، پایل، د پښو ګاڼه.

**پښویه** ( pṣoyá ) ښځ.م. ۱) د ژبې قاعدې، صرف و نحو، ګرامر؛ ۲) د یوه کتاب نوم.

**پښه** ( pṣá ) ښځ.م. (ج. پښې) ۱) پښه؛ ۲) کورنی، خپل، تبر؛ ۳) حصه، برخه.

**پښه ارته** ( paṣaãrtá ) ښځ.م. پـای وازی، د پښې ارتونه، په نوي ښېنې کې د زوم د کـورنی او د نجلی د کورنی یو ه او بل ته مېلمستیا کول.

**پښه پرڅای** ( pṣaparʒáy ) د چپرڅای، سمه بنه، عسکري بولی (قوماندہ).

**پښه سوری** ( paṣasũray ) نر.م (ج. پښه سوري) هغه چرګ چې د ناوي د راوړلو وروسته د آس یا موټر په مخ کې حلالېږي.

**پښه ییل** ( paṣayibál ) ص. نـر.م. پښـې ییلي، پښېله، پښې لوڅی، بې پیزاره پښې.

**پښی** ( paṣáy ) ښځ.م. خوکری، رواش.

**پښی** ( páṣay ) نر.م. مروره، مرری، لته کش؛ ۲) له کومې شخه د اوبو دبو کې د ایستلو رسی.

**پښېدل** ( paṣedál ) مص. ل. د مـار یا غـوایې پښ پښ کول.

**پښې لوڅ** ( paṣelũc ) ص. نر.م. و ګ. پښې ییل.

**پښېمان** ( paṣemán ) ص. نـر.م. ۱) پښېمـانـه، لیچغور؛ ۲) له خپل عهد او قول شخه اوښتلی؛ ۳) شرمنده.

**پښېمانتوب** ( paṣemãntób ) نر.م ۱) پښېماني، پښېمانتیا، له خپلې ارادې ګرځېدنه؛ ۲) بې ژبې، له خپله قوله ګرځېدنه؛ ۳) شرمنده توب.

**پښېمانېدل** ( paṣemãnedál ) مـص. ل. ۱) له خپلې ارادې ګرځېدل؛ ۲) له خپله قوله ګرځېدل، له خپلې وعدې اوښتل؛ ۳) شرمنده کېدل.

**پغنه** ( pağná ) ښځ.م. په کوېین، تسکورې او مېښې سره د شمکې د نرمولو کار.

**پغه** ( páğa ) ض. په هغه، د (په هغه) مخفف شکل.

**پف**(۱) ( paf ) نر.م. د ګنډلو یو ه ول ماشین دی.

**پف**(۲) ( puf ) نـر.م. ۱) د افسوس کلیمـه؛ ۲) ورک شه؛ ۳) د کـوم چـا د مبـالغې په مقابل کې د غبرګن په توګه هم پف وایي.

**پک** ( pák ) ص. نر.م. ۱) ګنجی؛ ۲) نر.م. سنګاوړ، د کشتی چپو؛ ۳) پخـه، د سرېخې؛ ٤) وخت، موقع؛ ٥) د ببړی مېره، بوک؛ ۲) وار، پېر.

**پکار** ( pakấr ) ص. نب. ۱) په کار، په بنه، په ښمر، په ګـټـه؛ ۲) بایـد ، اړین، حتمـي؛ ۳) خـوښ، منلی؛ ٤) غوښتنه.

**پکارېدل** ( pakãredál ) مص.ل. پـه کارکېدل، په کار راتلل، په ښمرېدل.

**پکرول** ( pakaráwal ) مص. مت. ۱) ګـرول، نوکاري پرې لګـول، ګروشبیل؛ ۲) پارول، کتول.

**پکرېدل** ( pakaredál ) مص.ل. ۱) ګرېدل، ګروشېدل ۲) قهرېدل، پارېدل، توربدل.

**پکړ** ( pakáṛ ) ص. نر.م. ۱) خوار، غریب، مسکین؛ ۲) نر.م. د لمنځي لرګی، دارچې لرګی.

**پکل** ( pakál ) نـر.م. ۱) کـپـر، چغ، پرده، هغه پرده چې له دورمو (نی) یا لـوخو شخه جوړېږي؛ ۲) مص. مت. پینل، کپه اچول، تلی اچول.

**پکنه** ( pakána ) ښځ.م. (ج. پکنې) پیننه، کپه اچونه تلی اچونه، ورغوی اچونه.

**پکو** ( pakó ) ص. نب. پوزې ته راغلی، په تنګ، بې حوصلې، په عذاب، له خانه ستړی.

**پکول** (pakól) نـر.م. وړینه ژمني ... ولۍ، هغه خولۍ چې سر تر غوږونو په کې پ... ي.

**پکوړه** (p(i,a)kowṛá) ښځ.م. کچالو ... د نخودو په اوړو کې ککړ او په غوړو کې ... شي.

**پکوڼۍ** (pakūṇáy) ښځ.م. هغه طلا ... سوې ښځه چې بل چا نکاح کړې وي.

**پکوالی** (pakowā́lay) نر.م: ... ـدنه، پوزې ته راتلنه، پوزې ته راتلنه، په عذابېد...

**پکه** (paká) ښځ.م. ۱)ببوزی، بادپکې ... ادپکه؛ ۲) گنجي، ینبسته وتلي، لـپندي؛ ۳) ... ونې، تلې، ورغومې.

**پکه باښه** (pakabāṣá) ښځ.م. کـوکـه ... یو ډول مرغه دی چې سر یې پک وي.

**پکه پاپکی** (pakapāpakáy) ښځ.م. یو ... ل واښه چې ببخ یې د کچالو غوندې دی.

**پکه تیره** (pakatizá) ښځ.م. و گ. پله تیره.

**پکۍ** (pakáy) ښځ.م ۱)اډې، د یوه جریب په اندازه یوه تخته پټی (ځمکه).

**پکی**[1] (pákay) نـر.م. (ج.پکي) ببـوزی، ببزی، بادپکی، بادپکه.

**پکی**[2] (pákay) نر.م ۱)دپک تصغیر؛ ۲)کلک.

**پکېدل** (pakedál) مص.ل. پک کېدل، پو گ کېدل، گنجي کېدل، روتن کېدل.

**پگ** (pág) نر.م (ج.پگونه) غټه پگړۍ، غټه د... ار، لوی پټکی.

**پگاره** (pagāṛá) ښځ.م. (ج.پگاړې) اشر، بلند، بسکر، پگره.

**پگړۍ** (pagṛáy) ښځ.م. ۱)دستار، پگ، پټـکی، لنگی، لنگوټه؛ ۲)غیرت، همت.

**پگڼه** (pagáṇa) ښځ.م. ۱)و گ. پگاره؛ ۲) د هندي کال یو ولسمه میاشت، هندي (پهاگن).

**پگونډ** (...wánḍ) نر.م. د ځنگې هغه وښ چې د نارینه و پر... ټ کېـږي.

**پگه** (pága) ښځ. ... گ. پگړی.

**پل**[1] (pál) نر.م ... ام، قدم؛ ۲)د پښې نښه، منډ؛ ۳)د ژرندې ... د کانی؛ ٤)د کـلال څـرخ؛ ٥)معافونه ... ښنه؛ ٦)خصي خاروی.

**پل**[2] (pil) نـر.م. ... ۱)د سترگو رپ، یوه گـړی، لـږه شېبه، کم... ؛ ۲) و گ. پیل.

**پل**[3] (pul) نر.م. ... پلونه) پر ویالې یا سیند د پاسه د تېرېدو جو... شوې لاره.

**پلا** (plā́) ښـځ.م. ... پلاوې) ۱)نوبت، وار، ځـل، دفعه؛ ۲)وخ... وره، تگ، گشت.

**پلار** (plā́r) نر.م. ... پلرونه) آبا، بابا، دادا.

**پلارتوب** (...ārtób) نر.م. پلاروالی، پلارکېدنه، پلارولي.

**پلارخېل** (pl...xel) نـر.ج. پلـرگنی، پلارگنی، اباگنی، پلـ... ي خپلوان.

**پلارمړی** (plārm...ay) نر.م. (ج.پلارمړي) یتیم شوی، بې پلاره شوی، یتیم.

**پلارنیکه** (plārn...ká) نـر.م. کـورنی، کـورمه، خېل خانه ... گه، نسب.

**پلارواکي** (plārw...) نـر.م. هغه تاریخي دوره چې په هغ... کې د یوې کـورنی تول صـلاحیت د پلار په وا... کې وي. پاتریکال.

**پلاز** (plā́z) نر.م. ۱)تخت، د پادچاهانو د ناستې ځای؛ ... واده په ورځ دزوم او ناوې د کېناستلو ځای.

**پلازمېنه** (plāzmená) نـر.م. (ج.پلازمېنې) دارالحکومه، پایتخت، د یوه هېواد مرکز

**پلاس** (palā́s) نـر.م. ۱)تاپ، بوجی، غټ او شډل تو... کر؛ ۲) گلم، تغر؛ ۳)ابورنه ورنه یوه ...

**پلال** (palā́l) نر.م. ۱)غوښتنه، لټه؛ ۲)، ساتنه.

**پلاله**[1] (palālā́) ښځ.م. ۱)پرووره، دروزه، وابسه، سواره؛ ۲)منهلي، درمند سراى.

**پلاله**[2] (plālā́) ص.نب. خوزاره، پلال گيره پټى، هغه پټى چي غنم او اوربشي وربانديکرل شوي وي او بيا وربيل شي.

**پلان** (plā́n) نر.م. (ج.پلانونه) ۱) نقشه، طرح، خاكه، پروژه؛ ۲)تجويز، تدبير.

**پلانده** (plāndā́) ښځ.م. غيږنيول، خوانيول، پهلواني ۲)مجادله، جگړه، نزاع.

**پلانکی** (plā́nkay) ض. پلانی، فلانی، فلانكی، مبهم ضمير دی.

**پلاڼ** (plā́ṇ) نر.م. كته، هغه غټ توكى يا گېدى چي پرمخ يې ترنگر گنډل شوى وي او د بار وړونكو حيواناتو پرشا اچول كيږي.

**پلاڼه**[1] (plāṇá) ښځ.م. ژى، رابيا، د اوسو مشك، لوى مشك، لوى ژى.

**پلاڼه**[2] (palāṇá) ښځ.م. ۱)درمند، د بوسوكوټه، بوساره؛ ۲)تركټي لاندي هغه توټه چي د خره په شا اچول كيږي؛ ۳) كته، ځل.

**پلاو** (palā́w) نر.م. پلو، پيلاو، په حرارت باندي پخې شوې وريجې.

**پلاوى** (palā́way) نر.م. استاز ډله، ليږلې شوى هيئت.

**پل پټى** (palpā́ṭay) نر.م. پل گرځوونكى، پل غلطوونكى، هغه سړى چي غل وپېژني او پل يې پټ كړي.

**پلپل پاڼې** (palpalpā́ṇe) ښځ.ج. ۱) د سپېدار د ونې پاڼې؛ ۲) د چينار يو ډول.

**پلپوټ** (palpóṭ) ص. نر.م. ۱)پټ، مخفي؛ ۲)نر.م. پرده اچونه، عيب پټونه؛ ۳) گړ ځونه،

اړونه؛ ٤)اغوستنه؛ ٥) يوه خبره وړانسونه؛ ٦)غوښتنه، لټونه، پل پېټ.

**پلپولک** (palpolák) نر.م. يو ډول تريخ بوټى دى چي اوبو ته نېږدي او په اوبو كي توكېږي.

**پلپېټ جن** (palpeṭján) ص.نر.م. پلتمن، ناقراره، ناارامه، اشوراند.

**پلت** (plát) نر.م. ۱)يوه ټوټه څمكه، لوڅمكه؛ ۲)طرحه، نقشه، مسوده؛ ۳)خيال، نظريه.

**پلتري** (plátri) ښځ.م. لښتي، والې، دغوړو مندرې، د ښځو د غوړونو گانه.

**پلترى** (palatráy) ښځ.م. پلتى، پرلت، پلتنې.

**پلتگ** (paltág) نر.م. تقليد، پيروي، متابعت، په چا پسي تلنه، تقليد كونه، د چا په پله تلنه.

**پلتند** (palatánd) ص. نر.م. نارامه، ناكراره.

**پلته** (paltá) ښځ.م. ۱)پيلته، پليته، د ډيوې وټ، د مالوچو پليته چي په لاتين او... كي يې اچوي؛ ۲)تيلي، دگوگړ خاش؛ ۳)د تابليټونو څو داني چي په كاغذ او يا په پلاستيكي پوښ كي ابښودل شوى وي.

**پلتى** (palatáy) ښځ.م. په گونډو كښناستنه، پلترى.

**پلتل** (palaṭál) مص. مت. ۱)لټول، كتل، اړول رااړول؛ ۲)څېړل، مطالعه كول.

**پلتمن** (palaṭmán) ص. نر.م. نارامه، ناكراره.

**پلټن** (palṭán) ښځ.م. (ج.پلټنې) پلټنه، عسكر، پوځ، د پليو عسكرو ټولگى، پلي عسكر چي شمېر يې له (۷۰۰-۱۰۰۰) پوري وي.

**پلټنى** (palṭánay) ص. نر.م. عسكر، سپاهي.

**پلټون** (plaṭū́n) نر.م. كتنه، پلټنه، لټون.

**پلټونكى** (plaṭūnkáy) نر.م. لټوونكى، تلاشي

**پلچک** (pulčák) نر.م. ۱) پروته، پېروته، عشق پېچان گل؛ ۲) کوچنی پل، پل کوټی.

**پلخ** (plác) ص. نر.ج بېر، د بېر وېښته، ګڼ وېښتان.

**پلخېور** (placcewár) ص. نر.م. بېر وېښته لرونکی ښاروی.

**پلرګنی** (plarganáy) ښځ.م. وګ. پلارخېل.

**پلرنی** (pláranay) ص. نر.م. د پلار، پلار پورې تړلی.

**پلستر** (plastár) ښځ.م. ۱) هغه پټی چې پر ټپ یې ږدي؛ ۲) جرابه؛ ۲) اخېړ، لبو، کاګل.

**پلسه** (palása) م. دروازه، لویه دروازه، د ښار ور.

**پلښته** (palištá) ص. ښځ.م. کنجنۍ، پلیته، بد عمله ښځه، بدکاره ښځه.

**پلغاشه** (palǧāšá) ښځ.م. سسته غوټه، غوریاشه، هغه غوټه چې ژر خلاصېږي.

**پلغټ** (palǧát) ص.نر.م ۱) وندی، ګرندی، چټک؛ ۲) نر.م. سرکونډی، سر په ککرۍ اوښتل.

**پلغتي** (palǧáti) ښځ.م. تېزي، چالاکي، وندیتوب.

**پل غلط** (palǧalát) ص. نر.م. منافق، تګ، دوه مخی، بدچلنده، بدګوزاره.

**پلک** (pálk) نر.م. د اوسپني غټ څټک چې د اوسپنو د ټکولو او سمولو لپاره په سندان ئې نښلي.

**پلکه** (palká) ښځ.م. (ج. پلکې) ۱) پنکۍ، وړوکی مېخ؛ ۲) ببخ، رېښنه؛ ۳) د ممیز په ببخ کې خلي؛ ٤) موټی، قبضه، د توري موټی.

**پلکی** (palakáy) ښځ.م. کبېره، د بیوي په کونده کې هغه کړی چې سسپار پرې کلکوي.

**پلګواښه** (palgwāšá) ښځ.م. غوریشه، غونیاسه، غوریاشه، پلواښه، د چینې د ترلو تاري حلقه.

**پلمن** (palmán) نر.م. پلین، پلینه، یوه ونه ده چې له ښانګو، جرړو څخه یې مسواک جوړوي.

**پلمه** (palmá) ښځ.م. (ج. پلمې) بهانه، بانه، حیله، مکر، فریب.

**پلن** (plán) ص.نر.م. ۱) پېرداره، سوړور، عریض؛ ۲) مسطح، هوار؛ ۳) پلی، پیاده؛ ٤) نر.م. مف پلن شوی، تکول شوی، اوارشوی.

**پلن پاڼی** (planpāṇáy) نر.م. ګوبی، کرم، ګلپی (ګلداره کرم).

**پلن تنی** (plantánay) نر.م. د تناسلي آلت سر.

**پلنتوب** (plantób) نر.م. پلنوالی، پسوروړتوب، پلنتیا، سرورتیا، په سورلوی والی.

**پلندر** (palandár) نر.م. د مور دویم مېړه.

**پلنډی** (plandáy) ښځ.م. ۱) جبه، بوخته؛ ۲) تګي، مکر، فریب، دوکه، چل.

**پلنډه** (plandá) ښځ.م. (ج. پلنډې) ۱) پېټی، پنډه، وڅه، پنډ، وڅکۍ؛ ۲) د اسباب غوټه.

**پلنډي** (plándi) ص. نر.م. (ج. پلنډیان) پنډوی، جوالي، پنډېوړونکی.

**پلن سری** (plansáray) نر.م. ۱) پارو، راشپېل، بیم؛ ۲) ص. نر.م. کم عقل، ناپوه؛ ۳) پلن سر واله.

**پلن ګوټی** (plangwáṭay) نر.م. منفرجه زاویه، هغه زاویه چې ترنوي درجې زیاته وي.

**پلنوالی** (planwāláy) نر.م. بر، سور، عرض.

**پلني** (pálni) نر.م. کالګیر، هغه پلنه تخته چې موچیان د کار په وخت ترزنګون لاندي نیسي.

**پلنېدل** (planedál) مص.ل. ۱) غوړېدل، په څمکه غوړېدل؛ ۲) ویږېدل؛ ۳) خرېېدل؛ ٤) شله کېدل، خرې کېدل، متېه کېدل.

**پلو** (paláw) نر.م. (ج. پلوونه) ۱) د څادر پیڅه؛ ۲) طرف، لوری؛ ۳) څنډه، اړخ، د خیمې برده؛ ٤) [illegible] لوری، پلوی؛ ٥) [illegible] پلاو.

**پلواښه** (palwāṣ́ə) ښځ. م. ۱) پلګواښه، پلوشه، عوراشه. ګوټمه، چيراس؛ ۲) خپل، خاندان؛ ۳) زنځير، زولنه؛ ٤) د پرتوګ ابن غوټه.

**پلوالی** (palwāláy) نر. م. بخښنه، بښنه، عفو، ورتېرېدنه.

**پلوڅه** (paloćá) ښځ. م. (ج. پلوڅې) ژرګه، زلزله، اهتزه ونه - يو ډول ونه ده.

**پلوڅکي** (plóćki) ښځ. م. پېخاړي، مېخاړي، هغه پېچي چې د مېږو او وزو په پښو او لم پورې خړېږي.

**پلودل** (plodə́l) مص. مت. ۱) ناپ کول، اندازه کول، مېچ کول.

**پلور** (plór) نر. م. ۱) بيه، ارزښت؛ ۲) خرڅلاو.

**پلورل** (plorə́l) مص. مت. خرڅول، په بيه ورکول.

**پلورليک** (plórlik) نر. م. قواله (قباله)، د پلور (خرڅلاو) سند.

**پلورنځی** (ploránǰay) نر. م. دوکان، هټ، هټی.

**پلورنه** (plorána) ښځ. م. (ج. پلورنې) خرڅونه.

**پلورونکی** (plorūnkáy) فا. نر. م. خرڅوونکی.

**پلوری** (plóray) ص. نر. م. سوداګر، تجار، تاجر.

**پلورينه** (plorina) ښځ. م. (ج. پلورينې) خرڅلاو، خرڅېدنه، پلورنه، خرڅونه.

**پلوړه** (ploṛá) ښځ. م. دهليز، کوشکن، کفش کن.

**پلوشه** (palwaśá) ښځ. م. ۱) ځريکه، څپره، د لمر راختو په وخت سره شعله؛ ۲) شعله؛ ۳) نور، تجلي، رڼاګه.

**پلوشين** (palwáśin) ص. نر. م. ورانګن، وړانګين، شعشع.

**پلوښه** (palwáṣa) ښځ. م. و. ګ. پلواښه.

**پلوغوټه** (plaw ğuṭá) ښځ. م. ۱) د واده ... سپتي ... سرېدلي د مبارکي لپاره چې خپلواني راغلي وي د بېرته تګ په وخت کې مېوه، جامې او ... چې له ځان سره يې وړي وي دې ته پلوغوټه وايي؛ ۲) هغه روپۍ چې زوم يې د لومړنۍ ليدنې په وخت خپلې پېغلې ته ورکوي؛ ۳) هغه روپۍ چې د پلار يا ورور له خوا خپلې خورلنې ته د واده په ورځ په پلو پورې ورغوټه کېږي.

**پلول**[1] (plawə́l) مص. مت. ۱) بښنل، بخښل، معاف ول؛ ۲) خصي کول؛ ۳) ځګ مښل، غړکه شاړل.

**پلول**[2] (palawə́l) مص. مت. قدم کول، په ګام کول، ځمکه په قدمونو کچ کول.

**پلوند** (palwánd) ص. نر. م. څورب، غټ، چاغ، په غوښو پټ، پهلوان، غښتلی، تيار.

**پلوندتوب** (palwandtób) نر. م. څوربوالي، چاغوالي، تياروالی، پلوندتيا، پلنډوالی.

**پلونيا** (palawniyā́) ښځ. م. فلونيا، يو ډول يوناني ترکيب (معجون).

**پلوی** (palawáy) ښځ. م. ۱) مستوره نجلۍ، مخ پټې پېغله، په ستر کې ناسته جلکۍ.

**پلوی** (paláway) نر. م. ۱) چرمباز، ترمباز، هغه غوبی چې په غوېل کې باندې طرف ته ترل شوی وي؛ ۲) طرفداري، پلوکونه؛ ۳) يو ډول توت؛ ٤) ص. نب. و. ګ. پلوېز.

**پلوي** (paláwi) ص. نر. م. ۱) ګاونډي، همسايه، پلوان شريک؛ ۲) طرفدار.

**پلوېز** (palwíz) ص. نر. م. ملګری، پلوي، حامي.

**پله**[1] (plá) ښځ. م. (ج. پلې) وجه، پښه، وربه د انسان او ځيوان په وجود کې سپين او کلک اعصاب.

**پله**[2] (pála) ښځ. م. (ج. پلې) ۱) چاپېری، د تلې يو پله؛ ۲) په لوری، پلو؛ ۳) د دروازې تمبه.

**پله ايلي** (palailáy) ښځ. م. يو ډول هيلې ...

**پله پسې** (palapáse) ق. پرلپسې، پرله پسې، یو په بل پسې، په یو مخ، مسلسل.

**پله پورې** (palapóre) ص. نب. نښتې، متصل، پیوست، پرله پورې، جوخت.

**پله تیږه** (palátiẓa) ښځ.م. رژېدونکي تیږه، دوړېدونکي تیږه.

**پلی**[1] (pálay) ص نر.م. (ج. پلي) ۱) پیاده، څړه، په پښو روان ۲) نر.م. پیاده عسکر؛ ۳) یو ډول کب؛ ٤) نر.م. ممپلی؛ ٥) د لوبیا، میوا او... پلي؛ ٦) دانګورو د لښتو هغه ګیډۍ چې تر پرېکولو وروسته ترل کېږي؛ ۷) د سپاري پال، کرکی.

**پلی**[2] (pláy) ښځ.م. ۱) کیلي، کنجی؛ ۲) نوسی؛ ۳) سسپار.

**پلی** (paláy) ښځ.م. ۱) د ارټ د ګرخولو لرګی؛ ۲) ګراری؛ ۳) کرنډی؛ ٤) و ګ. پولی.

**پلېپل** (palepál) نر.م. پایلی، پایی، پالی، پایپل، د ماشوم اول اول قدم اخیستل.

**پلیت** (palit) ص. نر.م. ۱) مردار، ګنده، ناپاک؛ ۲) بدعمله، بدکرداره؛ ۳) ناولی، بېلمانځه.

**پلېتکه** (pletáka) ښځ.م. ۱) پلته، پیلته، باتی؛ ۲) لمبه، شغله.

**پلیتول** (palitawál) مص. مت. ۱) ناپاکول، مردارول؛ ۲) بېلمانځه کول، ناولی کول؛ ۳) بدعمله کول؛ ٤) ورانول، بداخلاقه کول.

**پلیتونی** (palitónay) نر.م. هغه لرګی چې مالوچ اوروی پرې تاوېږي.

**پلیته** (palitá) ښځ.م. (ج. پلیتې) ۱) پلته، د ډیوې یا لاټین باتی؛ ۲) شوته، توکه، د جوارو شوته؛ ۳) کڅوړه، هغه کڅوړه چې د مرۍ د پرېمنځلو په وخت کې لمن له وراغوستل کېږي.

**پلیتېدل** (palitedál) مص. ل ۱) مردارېدل، ناپاکه کېدل؛ ۲) بدعمله کېدل، بدفعله کېدل.

**پلېټ** (palet) نر.م. ۱) بشقاب، غاب، نالبکی؛ ۲) خوراک؛ ۳) د موټرو لمبر (نمبر پلېټ).

**پلېټن** (pletán) نر.م. پټیلن، د جولا هغه لرګي چې تنسته ترې تاووي.

**پلېکو** (plekū́) ښځ.م. و ګ. پایکو.

**پلي کول** (plikawál) مص. مت. ترسره کول، عملي کول، تطبیقول.

**پلېل** (plel) جن. ۱) پیلیل، خوشبویه تېل، روغن موی، شرغوړ، پولیل؛ ۲) پلېښې.

**پلي لار** (plelā́r) ښځ.م. څړه لاره، د پلیو لاره، پیاده رو.

**پلېمن** (plemán) نر.م. و ګ. پلمن.

**پلېنه** (plená) ښځ.م. و ګ. پلمن.

**پلېونه** (plewā́na) ښځ.م. پلېنه، پلېون، بایکړ، د مسواک ونه.

**پلیه** (palyá) ص. نب. پلي، پیاده، په پښو، څړه.

**پم** (pám) نر.م. ۱) خارښت، پمنتوب، یو ډول جلدي ناروغي ده؛ ۲) د جوارو خوري، د جوارو سبوس، د رشقې میده ګي یا ګل؛ ۳) پخه، د ګنجې د سر روتې؛ ٤) خخوزي.

**پمانی** (pamā́nay) نر.م. پمنکی، پمنې، پمنه، پونی، یو غرنی تریخ نبات دی.

**پمبه** (pambá) ښځ.م. ۱) خخوښکی، چوخانی، د څه شي ذره؛ ۲) خوري، توته؛ ۳) کربوسکه.

**پمبه چو** (pambačó) نر.م. پمبې چو، کالکه، وچه غوزه، د پنبې وچه غوزه.

**پمبی** (pambáy) نر.م. ۱) پم، د جوارو خوره، د ریشقې میده ګي؛ ۲) اخور، پاخور؛ ۳) تومبی، کراپی؛ ٤) تاټ.

**پمبی مشر** (pambaymăšar) نر.م. ۱) میراخور، د سوبلو مشر؛ ۲) داروغه، د یل چا د درمندو ساروکی.

**پمپ** (pámp) نر.م. ۱) د هوا پمپ، د باد ورکولو آله؛ ۲) پمبه، د اوبو پمبه، د اوبو کښلو آله.

**پمل** (pamál) نر.م. پیمل، اندازه کول.

**پمپول** (pampawál) مص. مت. ۱) هوا ورکول له باده ډکول؛ ۲) اوبه ښکل، اوبه ایستل.

**پمپي** (pámpi) ص. نر.م. ۱) هوا ورکوونکی؛ ۲) نر.م. د ښځوبو سپک شان ګوړ ګاډی.

**پمفلېټ** (pámflet) نر.م. پامفلېټ، ووړه رساله.

**پمن** (pamán) ص.نر.م. ۱) پون، خارښتي، په پم اخته؛ ۲) خوار، نېستمن؛ ۳) بدبخت.

**پمنتوب** (pamantób) نر.م. پمنتیا، پمنوالی، خارښ لګېدنه.

**پمن کوړ** (pamankóṛ) نر.م. ۱) پیس، د برص ناروغي؛ ۲) خارښت، کهل، تخمور.

**پمن کوړن** (pamankūṛən) ص. نر.م. ۱) پمن چینجن، د پم په ناروغی اخته؛ ۲) ډېر خوار.

**پمنکی** (pamánkay) نر.م. پمنه، پونی، یو غرنی نبات دی، و.ګ. پمانی.

**پمنول** (pamanáwəl) مص. مت. ۱) د پم په ناروغی اخته کول؛ ۲) غریبول، خوارول.

**پمنېدل** (pamanedə́l) مص. ل. ۱) خارښت لګېدل، د پم په ناروغی اخته کېدل؛ ۲) خوارېدل.

**پمبچو** (pamečó) ښځ.م. و.ګ. پمبه چو.

**پن**[1] (pán) نر.م. سفر، مزل، پند.

**پن**[2] (pun) نر.م. و.ګ. پم.

**پنا** (paná) ښځ. ص. نر.م. ۱) پټ، غایب، له نظره پټ؛ ۲) ښځ.م. سیله، مرسته، امن، حفاظت؛ ۳) فنا؛ ۴) زړی تاران، پونی، پوارد؛ ۵) ښځ.م. خرپوونه، پنه، اوبونه؛ ۶) پونه، اوبه شیندنه.

**پناځای** (panāʒáy) نر.م. د پټېدو ځای، د پناه ځای، د امن ځای، ژغورځای.

**پناغوښتنه** (panāǧoṣtána) ښځ.م. شوغوښتنه، پناخواهي.

**پناوړنه** (panāwṛána) ښځ.م. شوورنه، پناه ګزیني، پناهنده ګي، مهاجرت.

**پنجالی** (panjāláy) ښځ.م. د ډول او پنایی لپاره پنجره غوندې ځای.

**پنجالی** (panjā́lay) ښځ.م. جغ. ژغ. یغ.

**پنجره** (panj(a)rá) ښځ.م. قفس، پنجره، د مرغیو ساتلو کېس.

**پنجغاښی** (panjǧā́ṣay) نر.م. ۱) پینځغښی، هغه حیوان چې پنځه غاښونه یې کړي وي؛ ۲) لرګین پنځه غاښیزه غاښور چې پتی جوړوي.

**پنجکی** (panjákay) نر.م. موتنی، دستګیر، د دروازې موتی.

**پنجه** (panjá) ښځ.م. ۱) منګول؛ ۲) دلاس او پښې ګوتې او خپر؛ ۳) دودې خوړلو آله؛ ۵) بو خوله خبري؛ ۶) یو څه وخت.

**پنجه بابا** (panjabā́bā) نر.م. پنجه پاو، کونیکر، کنجیبور، کړانکیش، چنګابن.

**پنجه خوري** (panjaxū́ri) ص. نب. ډېر زیات، زښت ډېر، بې شمېره.

**پنجه ګي** (panjági) ښځ.م. پنجه، د کارتوسو ایښودلو فلزي آله.

**پنچر** (pančár) ص. نر.م. سوری شوی ټایر.

**پنچرول** (pančarawə́l) مص. مت ۱) د ټایې نه باد ایستل؛ ۲) خوارژول، نېستمنول، کړیابول.

**پنچرېدل** (pančaredə́l) مص. ل. ۱) د ټایې باد ایستل کېدل؛ ۲) خوارېدل، نېستمنېدل.

**پنچم** (pančám) نر.م. مو. د اوو سُرونو له جملې نه پنځم سر دی چې د سرګم په وخت په «په» سره ښودل کېږي.

**پنچمی** (pančámay) ښځ.م. د میاشتې پنځم تاریخ.

**پنځ** (panǰ) نر.م. پیدایښت، خلقت، جوړښت.

**پنځ تکیز** (pınǰtəkiz) ص. نر.م. پنځه ډزی توپک، پنځه تکی توپک.

**پنځ څند** (pınǰcánd) نر.م. پنځه څنډی، پنځه ګوټی، مخمس، پنځه کونجی.

**پنځ غښی** (pınǰǧáṣay) ص. نر.م. هغه ښاروی چې پنځه غاښونه یې کړي وي.

**پنځ کابلیزه** (pınǰkābliză) ښځ.م. د افغانستان د یوې پخوانۍ سکې نوم.

**پنځګون** (pınǰgūn) نر.م. ۱) پنځه ګون، پنځه ګونې روپۍ؛ ۲) پنځګانه.

**پنځول** (panǰawā́l) مص. مت. ۱) پیدا کول، منځ ته راوړل؛ ۲) دجوال ډکول؛ ۳) بریالی کول؛ ۴) ډېرول، دوه چنده کول؛ ۵) آزادول، ارتول.

**پنځون** (panǰū́n) نر.م. طبیعت؛ پیدایښت.

**پنځه ډزی** (pınǰḍazáy) پنځډزی، پینځډزی، کن غوږی، غوږ ورتوپک، غوګین، غوږین.

**پنځی** (panǰáy) ښځ.م. د کورتو او چکې کځوره.

**پنځېدل** (panǰedā́l) مص. ل. ۱) پیدا کېدل، خلق کېدل؛ ۲) ډکېدل؛ ۳) برېدل؛ ۴) ارتېدل.

**پنځیز** (pınǰíz) ص. نر.م. پنځګون، هغه شی چې له پنځوو واحدو څخه جوړ وی.

**پنځه** (pancắ) ښځ.م. ۱) پوړپوړ؛ ۲) هغه وړوکي دېوال چې د نیم متر په اندازه لوړ او پلن وي.

**پند** (pand) نر.م. نصیحت، وعظ؛ ۲) دښمني، بدي؛ ۳) ص. نر.م. په خبر، غوندي؛ ٤) مکر، فریب، ټګي؛ ٥) مزل، سفر، پن.

**پندانه** (pundānắ) ښځ.م. د کریسوسکې زړی، د مالوچو تخم، د پمبې تخم.

**پندرور** (pandrawár) ص. نر.م. شونډه ور، هغه څوک چې شونډې یې پرسېدلې یا غټې وي.

**پندوک** (pandū́k) نر.م. غوټۍ، کلۍ، پوندک.

**پنده** (pánda) ښځ.م. غټه کولمه، دربی.

**پندی** (pandáy) ښځ.م. ۱) بشکه، پنډی، یو ډول خودرو یه سابه؛ ۲) شلګې، تبرګی، تبرزین؛ ۳) یو ډول نارو غي ده.

**پنډ** (panḍ) نر.م ۱) غوټه، مضبوط؛ ۲) اخېړ، لوا ړ؛ ۳) لوی بند، لوی تړ؛ ٤) بندبر، چقماق، پتاکې؛ ٥) ص.نر.م. غونډ، تول؛ ٦) نر.م. وخه، غوټه، وځکی، هغه درونډ وزن چې انسان یې په شا یا په سر وړي؛ ۷) ورکوټی چاود، کوساتی، درغ.

**پنډار** (panḍā́r) نر.م. باندار، ګڼه ګونه، ازدحام، ډېر خلک، د څو کسو مجلس.

**پنډاره** (panḍārá) ښځ.م. تولونه، هغه پیسې چې سازنده یې له خلکو څخه تولوي.

**پنډال** (panḍā́l) نر.م. دوکانچه، هغه ځای چې جلسه یا غونډه په کې تولېږي.

**پنډاو** (panḍā́w) ص. نر.م. ګرد، راغونډ، پنډ.

**پنډاور** (panḍawár) نر.م. په بنو یټ، په بنکو یټ، هغه چرګوړی چې مرداري پښې او بڼکې یې غوړځولې وي.

**پنډاوو** (panḍawū́) نر.م. ۱) لغړ چرګ، بې بڼکو چرګ؛ ۲) د مرغیو هغه بچیان چې لا بڼې پرې نه وي شنې شوي، (سیسوري) سر چیچړ.

**پنډبکر** (panḍbakár) نر.م. اورتک، پنډ، چقماق، بکوره، د چقماق ډبره.

**پنډت** (panḍát) ص.نر.م. ۱) غټ، ډډ، پړسېدلی؛ ۲) ښت، بې کاره؛ ۳) ...

یې په تیوریکه توګه زده کړې وي، خو عملاً ئه یې نه شي کولای.

**پنډتوب** (pandtób) نر.م. ۱) څوربوالی، پنډوالی، پنډیب، غټوالی: ۲) ضخامت، پرېړوالی.

**پنډتون** (pandtún) نر.م. پنډغالی شپول، د څارویو د بیو ځای کولو او ایسارولو ځای.

**پنډته** (pandáta) ښځ.م. توکه، مسخره، ملنډه.

**پنډغالی** (pandğálay) نر.م. ۱) شپول: ۲) هغه ځای چې څاروي په کې تولیږي: ۳) دېره، حجره، میلمستون: ٤) کسپ، بانډه: ٥) هغه خرس چې ښځلیو ته یې د پوندو د چاودېدو د مخنیوي لپاره ورکوي.

**پنډکی** (pandkáy) ښځ.م. ۱) پټکی، پټنی، هغه پټی چې ملهم ورباندې لګېدلی وي او په زخم باندې ایښودل کېږي: ۲) هغه میده دارو چې په زخم باندې دوړول کېږي.

**پنډګر** (pandgár) نر.م. هغه څوک چې پنډ بکړ ب اورلوبي ... جوړوي

**پنډل** (pandál) نر.م. ۱) پولنه، بند، بربند، سوړ: ۲) پیکټ، سګر، مورچه، خوکی: ۳) کوټه، توده، سربراته.

**پنډو** (pandú) نر.م. کبه ګوبه، عوبده، بوټه

**پنډور** (pandawár) ص. نر.م. پنډي ور، غټ پوښوی، پنډي ور، غټ، څوړ.

**پنډوره** (pandūrá) ښځ.م. کدو، د علي خی ... ابکونه.

**پنډوس** (pandós) نر.م. ۱) غنډوس، توپ، ګین: ۲) ص. نر.م. غټ، څورب: ۳) مست.

**پنډوسکه** (pandoská) ښځ.م. غنډوس، بوبکی، سرپ، پنډوس، پښډوس، پنډوسکی.

**پنډوسکی** (pandūskáy) نر.م. هغه غنډوسکی

چې په تېلو لړل شوی وي او د برات په شپه یې کرچېان لګوي او بیا یې پورته غورځوي.

**پنډوک مار** (pandūkmár) ص. نر.م. ۱) پنډي جوالي، پیتوازی: ۲) غلاګن، غلچکی.

**پنډوکی** (pandūkáy) نر.م. پنډوکي، وړوکی پنډ، ورکوټی پنډ، وړه غوټه، وڅکی.

**پنډول** (pandáwal) مص. مت. ۱) غونډول، ټولول، راغونډول: ۲) څربول، چاغول: ۲) ضخیمول.

**پنډولګر** (pandūlgár) ص. نر.م. د پنبې مزدور، هغه څوک چې په مزدورۍ پنبه ټولوي.

**پنډولي** (pandūlí) ښځ.م. پنډولی، د مېوې او د پنبې د ټولولو مزدوري.

**پنډولی** (pandūláy) ښځ.م. جولی، څولی، جلی، ګوبلی، هغه څادر چې پنبه په کې راټولوي، د مېوې یا د ونو راټولولو څولی.

**پنډون** (pandūn) نر.م. د څارویو بیوه ځای ته راټولول.

**پنډه**[1] (pandá) ښځ.م. (ج. پنډې) ۱) پنډکی، غوټه ۲) خیرات، صدقه: ۳) چم وړل، خاوره په بالتي کې وړل: ٤) ډډون، پړسوب: ٥) ګرمه اوسپنه.

**پنډه**[2] (pindá) ښځ.م. پینډه، ټول شوي مسلمانه، مسلمانه چې په بوډه سانک سره راټول شوي وي.

**پنډۍ**[1] (pundáy) ښځ.م. سپینه، پونډۍ، لنګی، لېنګی، د پښې د زنګانه او ښنګري ترمنځ برخه.

**پنډۍ**[2] (pandáy) ښځ.م. د نیزې څوکه، د سانګې څوکه، د بلې څوکه.

**پنډۍ**[3] (p(u,a)ndáy) ښځ.م. ۱) پوډول سابه دي: ۲) د لرګي صندوق.

**پنډي** (pándi) ص. نر.م. جوالي، مالي، حمال.

**پنډېدل** (pandedál) مص. ل. ۱) غونډېدل، څاروي په حلک سوځای راټولېدل: ۲) ضخیمېدل: ۳) چاغېدل، څربېدل: ۴) اړامېدل.

**پنډېرک** (pandĕrák) نر.م. پنېرک، کارګه، یو ډول ــ راني ـــ ګ دي.

**پنډېري** (pandĕráy) نر.م. ۱) پوزي، انډېري، پوزکی: ۲) د مزرو نه جوړه ترته، پریړی.

**پنډیور** (pandĕwár) ص.نر.م. پنډیاور، غټ پنډی، غورب، پنډالي.

**پنډي وریجي** (pandĕwrijé) ص. ښځ.ـ. غټي وریجي.

**پنس** (pins) نر.ـ. ۱) یو ډ طبي آله چې اسور تـه ورتـه ده: ۲) د د شلینګ دوولسمه برخه.

**پنسري** (pansáray) نر.م. ۱) راشبیل، خوی، پارو: ۲) تار، سپنسي.

**پنسل** (pinsál) نر.م. قلم، د لیکلو وسیله ده.

**پنګ** (pang) نر.م ۱) نري اواز: ۲) د مچانو، مرغیو دوزرو غږ: ۳) رنګ.

**پنګ پانګ** (pingpáng) نر.ـ. پینګ پانګ، د یوې لوبې نوم دی.

**پنګلی** (pangaláy) ښځ.م. پنګی، پونګی، پونګلي د اوریښي شنه ډنډر نه د تولي په ډول اواز باسي ۲) سرنا، سرنی.

**پنګن** (pangán) ص. نر.م. ۱) بې عزته، د پوني نه ویسنلی: ۲) ژرند، ژرندوک.

**پنګول** (pangawál) مص. مت. ۱) بونګول، سرنا غږول: ۲) د شپیلی ډوله الي نه یو خاص اواز ایستل.

**پنګوین** (pángwin) نر.م. یو راز مرغه دی چې پښې یې پردې لري او وزرونه یې لنډ دي.

**پنګه**[1] (pungá) ښځ.م. پنګی، غونځک، یو ډول مېوه چې مغز (چعزی) لري.

**پنګه**[2] (pangá) ښځ.ـ. ۱) هغه لـه اوبو ځحه ډک کاڼي او نهر چې په هوار ځمکه او ب ځنګله کې ډېر زور تللی وي: ۲) و ګ. پانګه.

**پنګه وال** (pangawál) نر.م. و ګ. پانګوال.

**پنګه ور** (pangawár) ص.نر.م. و ګ. پانګوال.

**پنګی** (pangáy) ښځ.م. ۱) پنګه، یو ډول غونډه مېوه چې مغز لري: ۲) پخه، سرنا: ۳) پونګې. د دروازې چوړ: ٤) د بنجارګی سامان: ٥) هواره شبیله، مانده، بې ډېرې خوږ: ٦) امسا، لکړه.

**پنګی** (pangáy) نر.ـ. ۱) پرېز، منجله، منجیله: ۲) د زخم پټي.

**پنلټي** (pinálti) ښځ.م. پینالټي: د فوټبال ـ ـه کې ګول سره نږدې خلاف ورزي.

**پنه** (pána) ښځ.م. د سپین کاغذ یوه ټـ ـه.

**پنی** (pánay) نر.م. یو ډول غرنی خوشبویه واښه.

**پني** (páne) ښځ.م. د مـرچنیـو زرې مخه، د پنې زرې مخ، د پنې د زر تارو مخ.

**پنی** (panáy) ښځ.م. زرې قیطان، لیث، کناری.

**پنېر** (panér) نر.م. پوخه، له تازه شـیدو ځخه جوړ شوې پوخه، او له پخو شـیدو ځخه هم په خاصه طریقه لاس ته راځي.

**پنېرمایه** (panermāyá) ښځ.م. خمزوری، سیلی، شلا، هغه څه چې د هغه په واسطه پنیر جوړیږي.

**پنېري** (páneri) ص. نر.م. هغه چاقو چې د ګـلانو ، پرېکولو لپاره کار ورځني اخیستل کېږي.

**پنیز** (pániz) نر.ـ. فانوس، پانوس، فندیل، یو ډول څراغ دی.

**پنیک** (pánik) نر.ـ. وېره، وحشت، ساه، وهـ، ترس، ډار.

**پڼ** (páṇ) ص. نـر.ـ. ډک، ترخولې ډک، تر غـاړو، موخه.

**پڼاکی** (punā́ki) نر.ـ. ورتل، د خـاورو ټو ـه د خاورو ترپکې پڼاکې دل

**پڼاو** (panāw) نر.م. ۱) مسابقه، دغره، کانکور؛ ۲) داوطلبي، دوهل.

**پڼسی** (pánsay) نر.م. تار، سپنسی.

**پڼکېدل** (pankedál) مص.ل. ځلېدل، برېښېدل، برکېدل، پرقېدل، چرکېدل.

**پڼل** (p(a,u)nál) نر.م. زړی، خسته، مندکه.

**پڼوځای** (ponūjāy) نر.م. د موچڼو ځای، د ځپلیو یا بوټو د کارولو ځای.

**پڼول** (panawál) مص.مت ۱) اوبه کول، اوبه ورکول، اوبول، پېه کول، خړوبول؛ ۲) زړی ماتول، مندکه ماتول، د خستې مغز ایستل.

**پڼه** (paná) ښځ.م. ۱) موچڼه، مچڼه، دکی، یو ډول زړي یا خرمني پیزار؛ ۲) د بوري شربت؛ ۳) اوبونه، خړوبونه؛ ٤) اوبه شیندنه، شننه، آبپاشي؛ ٥) ص.نب. تول شوي، پنډ شوي.

**پڼه وڼه** (panawána) ښځ.م. زور، قدرت، طاقت، توان، سبک، توانايي.

**پو**(۱) (pū) نر.م. پف، پوکول، چف کول، دم.

**پو**(۲) (pó) ص.نب ۱) وګ.پوه؛ ۲) ښځ.م. د مګرتر میاشتې وروسته د هندي میاشتې نوم.

**پوار** (pūwār) نر.م. نری باران، ښورمک.

**پواړ** (pūwáṛ) ص.نر.م. ۱) خیرن، خچن، ناولی؛ ۲) بې هره؛ ۳) بې سلیقې؛ ٤) ساده سری.

**پوپ تني** (pūptánay) نر.م. ملاچرګک، ګوی چرګ، ملاګدی، کوکوپښ، پوپوګک.

**پوپک** (pūpák) نر.م. پوفک، د مرغۍ ویښتلو یو ډول نیچه.

**پوپکه** (pūpáka) ښځ.م. ۱) تناکه؛ ۲) پرسوب.

**پوپل** (popál) نر.م. ۱) د یو ګل نوم؛ ۲) د پښتنو د یوې قبیلې نوم.

**پوپنا** (pūpaná) ص.نب. تباه، برباد، ورک.

**پوپو** (pūpó) ښځ.م. ۱) ترور، د پلار خور، د مور خور (خاله)؛ ۲) اګو، مشرې ښځې ته د عزت په ډول ویل کېږي.

**پوپی** (pūpáy) نر.م. ۱) ښاپېرک، ماښام ځلکی ۲) تاتکه، یو ډول وانبه چې ژاوله ترې جوړېږي ۳) یو ډول سپین ګل.

**پوت** (pūt) نر.م. ۱) لمخی، نیخی، کوځی؛ ۲) زړی، بچی، زمنکی، زمنګی.

**پوتاش** (potāš) نر.م.ج. پتاس، کریناټ د وسوږ لرګیو له ایرو نه لاس ته راځي، محرق پتاس.

**پوتړه** (pūtṛá) ښځ.م. د کوچني د ښولو د پاکولو چیږه.

**پوتکی** (pūtakáy) ښځ.م. غوره، بندی، غارکی، د ښځو د غاړې ګاڼه.

**پوتل** (pawtál) نر.م. پرخوره، تفاله، توپاله، پوسه، ګیچه.

**پوتلی** (pūtláy) ښځ.م. د لرګو هغه ناوکی چې د تار په وسیله سره ځرخېږي یا ګډېږي.

**پوته** (pūtá) ښځ.م. د غوایي د خرمني ننې پرخه، د غوایي د خرمني داخلي برخه.

**پوتی** (pūtáy) ښځ.م. د یادښت کتابچه، د یادښت کتاب، د حسابي چارو کتاب.

**پوټ** (pūṭ) نر.م. ۱) غم، مصیبت؛ ۲) مجلس، غونډه؛ ۳) پوټکی، پتخی، د ونې پوستکی؛ ٤) خرمن، پوست، ژون.

**پوټک** (pūṭák) نر.م. یو ډول ګرد او غونچه وانبه.

**پوټکی** (poṭákay) نر.م. ۱) پوستکی، خرمن، پوست، وژن، پوتخی؛ ۲) د خاورو وړه غونډۍ، د خاورو ورکوټې توپۍ.

**پوټونی** (pūṭū́ne) ښځ.م. پټونی، مورچه، خارن ځای، په خوګې یا مورچل کې د ناستې ځای.

**پوتی**[۱] (pόṭay) نر.م. ۱) دخاورو غونډی، د خاورو تپی؛ د خاورو پایه، د خاورو پوښتنه؛ ۲) مېړي خاوري، مېده او ګرده خاوره.

**پوتی**[۲] (pūṭay) ص. نر.م. ۱) لې شان، پوتسکی؛ ۲) نر.م. دوړی خځوزی؛ ۳) د رخت ټوټه، لته، څیره، لتوره، لیتاړه؛ ٤) کوچنی صندوق.

**پوټین** (pόṭın) نر.م. هغه بوټ چې ساق یې تر بجلکې پورې رسېږي.

**پوجا** (pūjā) ښځ.م. ۱) عبادت، پرستش، پرستنې؛ ۲) خوشامنده، پوجاپاټ.

**پوجاپاټ** (pūjāpāṭ) نر.م. ۱) عبادت، پرستش؛ ۲) پوجا، خوشامد، چاپلوسي، غوړه مالي.

**پوجي** (pūji) ښځ.م. ګوډه، د پښې ګوډ، خښتاوه، للون.

**پوچ** (pūč) ص.نر.م ۱) بد ژبی؛ ۲) سپک، بې ادبه، عبث فضول؛ ۳) نر.م. کـوټې لـوبه، ګـوټه، یوه لـوبه ده؛ ٤) هـغـه چـارمغـز، بادام چې منځ یې خـالي وي؛ ۲) توس، هـغـه لـرګی چې منځ یې خوړل شوی وي؛ ۳) بې نتیجې.

**پوچ انـدی** (pūčanday) ص.نـر.م. بـد اندی، بداندېش، بد سګال.

**پوچ خولتوب** (pūčxwaltόb) نر.م. پوچ خولتیا، فضوله غږېدا، چټی پرغېدنه.

**پوچغلی** (pūčġalay) نـر.م. د پـسـونو، مېږو یو دول ناروغي ده.

**پوچک** (pūčak) ص. نر.م. ۱) تش، بې مغزه، کم عقل؛ ۲) نـر.م. د کارتوس تولی؛ ۳) فضـول، خوشه تاړی؛ ٤) ټوټه، لږ خیز، ذره، ټوک.

**پوچکه** (pūčaka) ښځ.م. هغه هندوانه چې لـه ګل غـخه وروسته د ستي په جورنګ (جیلغ) پوري پیدا کېږي.

**پوچ ورد** (pūčvard) نر.ج. رد بد، چټیات، کنځا، کنځاوي، کنځلې، زیاړې، زېږي.

**پوچول** (pūčawál) مص. مت. ۱) ټکل، پتاکی، هغه ټوپک چې د کارتـوس پتـاکی ووهي او کارتوس خلاص نه شي؛ ۲) بې نتیجې او بې حاصله کول؛ ۳) دوکول.

**پوچی** (pūčay) ښځ.م. کله چې د خټکو او خربوزو پالیـز لاښ شي، هـغـه کـوچنی دانې چې په جورنګانو کې پاتې شي پوچی نومېږي.

**پوچي بوړي** (pūčebόṛe) ص. ښځ.م. خوشې خبرې، چټي خبرې، عبث خبرې.

**پوځ** (páwj) نر.م. فوج، فوځ، لښکر.

**پوځي** (páwji) نـر.م. ۱) عسکر، فـوجي، فوځي، سپاهي؛ ۲) تجربه کار، نظامي.

**پوڅکه** (pūcáka) ښځ.م. خـام دانه، اومـه دانه، پې دانه، کچه دانه، هغه دانه چې شیره وي.

**پوڅکی** (pūcakáy) ښځ.م. ۱) پڅکی، نـرمی، دغوږ لاندېنی نرمه برخه؛ ۲) خړیکی، خریړی، سماروق، ستوری.

**پوڅه** (pocá) ښځ.م. ۱) خام پنـهـر، پرنډ، پوچـه؛ ۲) ګیچه، تفاله، توپاله؛ ۳) چفجی، جغزی، ګیچی، خوړه چرګی، د چارمغز، بادام او...مغز.

**پوڅي** (pocáy) ښځ.م. لـېڅی، لـڅی، د وریـو هغه ګـرنجی چې په لاس کې د وریشلو لپاره جوړې شوي وي.

**پوخ** (póx) ص. نـر.م. (ج. پـاخـه) ۱) رسـېدلی؛ ۲) زوړ، هوښیار؛ ۳) ټینـګ؛ ٤) غوړیز، غوړه؛ ٥) مشروټ، پخـنی، هغه ورګـوټی ماشوم چې پخې خبرې کوي.

**پوخ ځانښت** (poxcā́st) ق. کچه غرمه، تنکۍ غرمه، د ټکندې غرمې نه مخکې وخت.

**پوخره** (pūxrá) ص. نب. وریت پریت، سوی لوغړن، • کسکر.

**پوخلې** (poxále) ښځ.م. تـوخلې، شنه توخـلـه، نوره توخله، توره غاړه.

**پوخنا** (poxnā́) ص. نـر.م. پوخـناتـي، پوخ هلک، پخنی، هغه ماشوم چې پخې خبرې کوي.

**پوخوالی** (poxwā́lay) نر.م. پوختوب، پخوالی، پوختیا، مضبوطوالی، کلکوالی، ټینګوالی.

**پوخول** (poxawál) مص. مت. و.ګ. پخول.

**پوخېدل** (poxedál) مص. ل. و.ګ. پخېدل.

**پوخه** (poxá) ښځ.م. د غرمنې دوړې توتې.

**پوده** (pūdá) ص. نب. ۱) وروست، خوسا، خـراب؛ ۲) ښځ.م. تنسته، د کنې ینبه، ینبه.

**پودینه** (pūdiná) ښځ.م. ویلنکی، ایلنی، ویلنی، نانا.

**پودر** (podár) نـر.م. پاودر، ګـرد، ګـرز، رش، سفوف، هر شی چې پوره مېده شي.

**پور** (pūr) نـر.م. ۱) قرض، پیـر؛ ۲) بدل، قصاص؛ ۳) تاوان، زیان؛ ٤) کلي، آبادي؛ لکه لعل پور ٥) زوی، بچی؛ ٦) وار، نوبت، بـرګ، د ګـانې هغه کرایې چې شریت یې پوخ شوی وي؛ ۷) رده بوره، پخسه، پوړ؛ ۲) قات، کت.

**پوراینه** (porāyána) ښځ.م. ۱) پوره کول، بشپړونه؛ ۲) ادائینه، پور بېرته ورکول.

**پورب** (poráb) نر.م. لمرخاته، ختیځ.

**پوربي** (pórbi) ښځ.م. ۱) د پوربیا نوژبـه، پورب ته منسوب؛ ۲) په ختیزې کلاسیکي موسیقی کې یو ټاټ دی.

**پورتنی** (p(o,u)rtánay) ص. نر.م. ۱) پاسنی، بانډینی، پورته؛ ۲) د پورته سیمې اوسېدونکی.

**پورته** (portá) ق. ۱) پاس، اوچت، بر، برهٔ، جګ، لوړ؛ ۲) په هوا کې؛ ۳) په مرتبه کې اوچت.

**پورته کول** (p(o,u)rtakawál) مص. مت ۱) راجګول (له کبېنته)؛ ۲) اوچتول، لوړول، ترقي ورکول؛ ۳) پارول، تحریکول، لمسول.

**پورته والی** (purtawā́lay) نر.م. ۱) اوچتوالی، جګوالی، ارتفاع؛ ۲) ترقي، پرمختیا.

**پورتې** (pórte) نر.م. ج. مـو. حـاملې کـرښې، د موزیک په نوتېشن کې پنځه موازي کرښې دي چې ترمنځ یې څلور خالیګاوې دي.

**پورځل** (porǰál) مص. مت. خبرې کـول، غـږېدل، ګنهدل، رغېدل.

**پورژنی** (poržánay) ص. نـر.م. ۱) مسافر، بې وطنه، پردیس؛ ۲) فراري، شړل شوی.

**پورغو** (porǧū́) نر.م. غاړه شوی غوبې، پرویغی، پل غو، پول غو، سبلې.

**پوروالا** (porwālā́) فا. نـر.م. د پورخښـتن، پور لرونکی، هغه څوک چې په چا پور ولري.

**پوروری** (porawāray) فا. نر.م. قرضدار، مقروض، چې د چا پور باندې وي.

**پورول** (porawál) مص. مت. ۱) پور کول، قـرض کول، په قرض اخیستل؛ ۲) زیاتل، زیادول، په چا خپله نېکي او احسان بارول.

**پوروونکی** (porawū́nkay) فا. نر.م. ۱) قرض کوونکی، قرض اخیستونکی؛ ۲) زیادوونکی، زیاتونکی.

**پوروونی** (porawū́nay) نر.م. کتغ، نکولی، لمدبل، پورې کوونکی (کتغ).

**پوره** (pūrá) ص. نب. ۱) مکمل، کـامل، بشپړ، تول، ثابت، ګـرد؛ ۲) ختـم، سـرته رسـېدلی؛ ۳) څوک چې چاته اړه نه لري.

**پوره یاسپوره** (porayāsporá) ښځ.م. پورې یا سپوره، لنډه یا ږوه (دوړې).

**پوري** (póre) اد. ۱) ترهغه، ته، ۲) ق. بند، تړلی، پورې؛ ۳) شروع، ابتدا؛ ٤) ښځ.م. خوا، د سين يا سرک بله غاړه؛ ٤) اص. مت. ورسره، نيږدې، جوخت؛ ۵) په وجه، په سبب؛ ٦) په ذمه، په غاړه؛ ۷) ربط، سره؛ ۸) د پريفکس په ډول هم راځي؛ لکه: پوري کول.

**پوري خوا** (porexwā́) ق. پوري پلو، پوري غاړه، د درياب بله غاړه، هغه خوا.

**پوري راپوري** (porerāpóre) ق. اخوا، دېخوا، هخوا، دېخوا. پوري ووري.

**پوري کول** (porekawə́l) مص. مت. ۱) پوري ايستل، پوري غاړې ته تېرول؛ ۲) بندول؛ ۳) لګول؛ ٤) نښلول؛ ۵) تپل؛ ٦) په کنځ پوري دودې خوړل، له نګولي سره دودۍ پوري کول.

**پوري کېدل** (porekedə́l) مص. ل. ۱) بلې غاړې ته تېرېدل، پوري وتل؛ ۲) اورلګېدل؛ ۳) ور تړل کېدل؛ ٤) تپل کېدل؛ ۵) اخته کېدل، مبتلا کېدل، په مرض اخته کېدل.

**پوريواته** (porewātá) نر.ج. پوري کېده، پوري غاړې ته تېرېده.

**پوري وتل** (porewatə́l) مص. ل. پوري غاړې ته تلل، د سيند يا سرک بلې غاړې ته تلل.

**پوري ووري** (porewóre) ق. ۱) پوري راپورې، دواړه خواوې، اخوا دېخوا؛ ۲) اريان، حيران؛ ۳) بېکته پورته، کوز پاس.

**پوري وهل** (porewahə́l) مصص. مت. ۱) ديکه ورکول؛ ۲) له چا سره مرسته کول؛ ۳) غورځول نسکورول؛ ٤) منهل.

**پوري ويستل** (porewestə́l) مص. مت. پوري ايستل، پوري باسل، پوري کول، د سيند بلې غاړې ته پوري باسل.

**پور**⁽¹⁾ (pōr) ص. نر.م. ۱) نيم خام، کچه؛ ۲) نر.م. ښستن، اساس، بنسټ؛ ۳) الوتى او پلن پوزى؛ ٤) د ګېې پرګ، د ګېې تقاله؛ ۵) غمسوتى، ژنى؛ ٦) دا کليمه د زور او سور سره د تابع مهمل په ډول راځي چې د هرزيات مانا ورکوي.

**پور**⁽²⁾ (pūṛ) نر.م. ۱) طبقه، مرتبه، منزل؛ ۲) صنف، قطار؛ ۳) بوس، پرروړه؛ ٤) د مېچنې پل.

**پورا** (pūrā́) ص. نر.م. ارام، داډه، مطمئن، متيقن، ټينګ، په ډاډ وېسا لرونکی.

**پوراينه** (pūṛāyə́na) ښځ.م. ډاډ، ډاډينه، په ډاډ ويسا لرنه، په ډاډ اطمينان لرنه.

**پورپ** (pūṛp) نر.م. شډل، په طبيعي ډول زرغون شوى، خود رويه.

**پورپه پور** (pūṛpapū́ṛ) ق. منزل په منزل، پټ په پټ، طبقه په طبقه.

**پورده** (pordá) ص. نب. ۱) ډاډه، په اطمينان؛ ۲) پورده، ذمه وار، مسوول.

**پورنده** (pūṛánda) ښځ. م. ۱) ګرمه ايره، توده خاوره، توده شګه؛ ۲) پسته خاوره.

**پورنده توب** (pūṛandatób) نر.م. پورنده تيا، پورنده والی، د نرمې او ګرمې ايرې په څېر نرموالی درلودنه.

**پورنده خاوره** (pūṛandaxāwrá) ښځ.م. وچه او نرمه خاوره، وچه ميده او پسته خاوره.

**پورنی** (poṛə́nay) اړوکی، ټيکرى، ښځينه څادر.

**پورو** (poṛū́) نر.م. ۱) پاړو، دم، جادو، کوډې؛ ۲) ص. نر.م. چالاک، مکار، ټګ، برګ.

**پوره**⁽¹⁾ (poṛá) ص. نب. ۱) ورګ. پورا؛ ۲) ډاډه، مطمئن؛ ۳) نيم خام، نيم پخته؛ ٤) مراهق.

**پوره**⁽²⁾ (pūṛá) ښځ.م. بيم، راشېل، خوى، سېچه، ژي، ژړوني، کړدني.

**پوړی** (pūṛáy) ښځ.م ۱) سرپوړی، پړاته، له اوړو څخه په غوړو کې پخه شوې ډوډۍ؛ ۲) پوړی، پړی، هغه پوډر چې په کاغذ کې ترل شوې وي؛ ۳) پنگه، پنجه، پړی لرونکې ببلچه چې دوه تنه کار ورباندې کوي؛ ٤) اندر پایه، دریه، زینه، پارسنگ؛ ۲) پاتکی، پته، د درپې زکی.

**پوړی پر پوړی** (puṛáyparpawṛáy) ښځ.م. درجه پر درجه، پرله پسې، یو بل پسې.

**پوړیز** (pūṛ íz) ص.نر.م ۱) پوړته منسوب، د پوړ؛ ۲) پنکي لرونکی، پاتکی لرونکی.

**پوز** (p(ū,o)z) نر.م. عک. ژست، پوز غوره کول، ژست نیول.

**پوزمیر** (pozmír) ص. نر.م. پوزوور، پیزوور، غټې پوزې چې پزه غټه وي.

**پوز ورکول** (p(u,o)zwarkawəl) مص. مت. عک. د یوې ځېرې د غوره کولو لاربښودنه چې د عکس اخستونکي له خوا کېږي.

**پوزه** (póza) ښځ.م. ۱) پزه؛ ۲) ورسک، شونډ، د غره یا غونډۍ هغه راوتلې برخه چې د اوارې ځمکې خواته وي.

**پوزی**[1] (pūzáy) نر.م. (ج.پوزي) انډېری، بوریا، پوزکی (مصغر)، حصیر، پیزی، چتیایي.

**پوزی**[2] (pozáy) نر.م. مهار، نته، هغه مهار چې د اوښ پزې ته وراچول شوی وي.

**پوزیشن** (puzišán) نر.م. ۱) موقعیت، وضعیت، حالت؛ ۲) حیثیت؛ ۳) اندازه، طرز، نکته، خیال؛ ٤) شغل، عهده، منصب، مقام.

**پوژوهل** (pužwahál) مص. مت. پوکنول، پوژول، پوړول، پوړول، پونه کول، په خوله اوبه شیندل.

**پوړ** (puẓ) نر.م. ۱) پوړ، په خوله د اوبو یا بل مایع پاشل؛ ۲) بخار.

**پوړل** (puẓál) مص. مت. پوړل وهل، پسوړیل، پوکنول، پوړول، په خوله باندې د اوبو یا بل مایع پاشل یا پونه کول.

**پوړول** (puẓawə́l) مص. مت. پوړل، پسوړول، پوړ وهل، پوکنول، په خوله د اوبو یا نورو مایعاتو شیندل.

**پوړی** (pū́ẓay) نر.م. یو ډول وابښه چې د پیاز په ډول ببخ لري.

**پوس** (pūs) نر.م. چاغ حیوان، خوړب څاروی.

**پوسپوسک** (pūsposák) نر.م. خړ رنگې حشره ده چې د بربد بوی ترې ځي، د ونې ابا.

**پوست** (post) ص. نر.م. ۱) نرم، ملایم؛ ۲) نر.م. مقام، مرتبه؛ ۳) نر.م. پوستکی، څرمن، ژون؛ ٤) د خولې پوستکی، قره قلي، پیخه؛ ٥) د کوکنارو تخم.

**پوستک** (posták) نر.م. د څرمنې توته، د پوست توته.

**پوستکی** (postákay) نر.م. ۱) پوست، پوستوکی، څرمن، وژن؛ ۲) قره قلي، د خولې پوست.

**پوستوالی** (postwā́lay) نر.م. نرموالی، نرمي، ملایمتوب.

**پوستول** (postawə́l) مص. مت. ۱) پوست کول، څرمن ایستل؛ ۲) مجازاً په بې انصافۍ سره له چا څخه مال او دولت شکول (اخیستل).

**پوسته** (postá) ښځ.م. ۱) دوده، د خاشخاشو غوټې د پوست اوبه، هغه اوبه چې د افیونو پر ځای یې څښي؛ ۲) عس. څو تنه چې د وظیفې د اجرا لپاره د خپل اصلي جزوتام نه بهر خپله دنده اجرا کوي؛ ۳) ډاگ، پست، چاپار.

**پوسته خانه** (postaxānā́) ښځ.م. ډاګخانه، چاپارخانه، پوسټ آفیس.

**پوسته رسان** (postarasā́n) نر.م. ډاګي، پوسته رسوونکی، هغه څوک چې پوسته وېشي.

**پوستي** (pósti) ص. نب. ۱) د پوستې، د پوستې مربوط؛ ۲) ص. نر.م. په پوستو عادت، افیمي (سړی)، تریاکي؛ ۲) کاهل، سست.

**پوستېدل** (postedә́l) مص. ل. پوست کېدل، له پوسته کېدل، کوتل کېدل.

**پوستین** (póstin) نر.م. د کوټ په څېر لـه وړینو پوستکو څخه جوړې شوې جامې.

**پوستینچه** (postinčá) ښځ.م. کوچنی پوستین، لنډ پوستین، واسکټ ډوله پوستین.

**پوسکاوڼ** (pūskāwáṇ) فا. نر.م. ۱) پوسکن، تسن؛ ۲) بې همته، ناراسته، بېکاره.

**پوسکی** (pūsákay) نر.م. پس پس، پس پسی، په غوږو کې د دوو کسو ترمنځ خبرې.

**پوسکۍ** (pūskáy) ښځ.م. تس، پسکه، دمقعد له لیارې د معدې هوا د باندې وتل.

**پوسل** (posә́l) مص. مت. ۱) د لاسه کول، دلاسا کول، غوړول، پالل؛ ۲) د پمن شاروي غوړول؛ ۳) پالل، ساتل؛ ٤) منبل، د بدن په کومه حصه باندې لاس تېرول.

**پوسل توب** (posaltób) نر.م. ۱) پوسل والی، دلاسا توب؛ ۲) د پسن شاروي غوړونه؛ ۳) پالنه، ساتنه؛ ٤) منبل توب، منبنه.

**پوسلونکی** (pos(u)lūnkáy) فا. نر.م. ۱) پسولونکی؛ ۲) د کوټې چت پټوونکی.

**پوسله** (poslá) ښځ.م. (ج. پوسلې) پوصله، یوه درجه لـرونکې آله ده چې د زاویو په تعیین کې کار ترې اخلي.

**پوسن** (pūsún) ص.م. ۱) کم عقل، ناپوه، احمق؛ ۳) دروغجن؛ ٤) دارن، وېرندوکی.

**پوسنه** (pūsána) ښځ.م. ۱) تسلي کول؛ ۲) د پمن شاروي وړونه؛ ۳) پالنه، ساتنه؛ ٤) منبنه.

**پوسه**[1] (posá) ښځ.م. پوځه، پوګ، پوړ، تفاله، څخبوکی، ګیچه.

**پوسه**[2] (pūsá) ښځ.م. ۱) د شنې دونې مېوه چې خوړلو ته مېده شي؛ ۲) د خوشایو سوته.

**پوسۍ** (posáy) ښځ.م. پوځی، د غوږ پوځکی، د غوږ پېځکی، د غوږ نرمی.

**پوسی** (pósay) ص. نر.م. ۱) پوسن؛ ۲) احمق، بې عقل، کم عقل، ساده.

**پوش** (póš) نر.م. ۱) جوړه، کمیس پرتوګ؛ ۲) پوښ، د یوه شي د ساتلو لپاره چې کڅوړه یا مخ ورکړی شي.

**پوش پوش** (pošpóš) ص. نر.م. ۱) پوشاپوش؛ ۲) شیرې شیرې، دانګې دانګې.

**پوشل** (pošә́l) مص. مت. پټول، خوندي کول، راز ساتل.

**پوښ** (póṣ) نر.م. ۱) تکه، غلاف، خلته، پوش؛ ۲) جامې، کالي؛ ۳) د ناوې جوړه.

**پوښاک** (poṣā́k) نر.م. جامې، کالي، لباس.

**پوښتل** (p(o,ū)ṣtә́l) مص. مت. ۱) تپوس کول، پوښتنه کول، حال معلومول؛ ۲) د سوال ځواب غوښتل؛ ۳) په عذابول.

**پوښتنپاڼه** (p(o,ū)ṣtanpāṇá) ښځ.م. استعلام، د پوښتنې کاغذ، انګېټ، پوښتنلیک.

**پوښتنلیک** (poṣtánlik) نر.م. د پوښتنو لیست یا کتاب.

**پوښتنه** (pūṣtána) ښځ.م. ۱) تپوس، سوال، حال معلومونه، ګروېږنه؛ ۲) د ناروغ پوښتنه، د

د حور احوال پوښتل

**پوښتوال** (pūṣtwál) ص. ف. ت. ستیرونکی ...

**پوښتونکی** (p(a,ū)ṣtūnkay) فا. نر.م. تپوس کوونکی، سوال کوونکی، حال معلوموونکی.

**پوښته** (pūṣtá) ښځ.م. ۱) و.گ. پښتنه؛ ۲) غونډی، ډډه، تپه؛ ۳) نر.ج. پوښتنه کېدنه، معلومات کېدل.

**پوښتی** (pūṣtáy) ښځ.م.ج. ۱) د سینې د قفس هډوکی؛ ۲) کوږتی، کږی، یو ډول وېښتی مږ؛ ۳) بیت، نسل، حیل.

**پوښتېدل** (pūṣtedál) مص. تپوس ترې کېدل، خواب غوښتل کېدل.

**پوښښ** (posáṣ) نر.م. پوشش، د کوټې چت پټول.

**پوښل** (posál) مص. مت. ۱) پوښل، د کوټې چت پټول، کوټه پټول؛ ۲) پټول، پوښ ورکول.

**پوښنه** (posána) ښځ.م. پوښنگ، پوښښنه، پټونه، پوښ کونه.

**پوښول** (posawál) مص. مت. ۱) پوښول، پوښ ورکول؛ ۲) پټول، پوښ ورکول.

**پوښه** (posá) ښځ.م. هغه لرگی چې لمونځ کوونکی یې د لمانځه په وخت خپل مخ ته دروي. ستره.

**پوغله** (poğlá) ښځ.م. ډاسه، بول، پیغولي، د نوي پیدا شوي ورغومي یا گډوري نرمې بولې.

**پوک** (pūk) نر.م. ۱) پوگ، پوس، تفاله، گیچه؛ ۲) ص. ډډ، مجوف، منځ خالي؛ ۳) پوکی، پف، پو؛ ٤) ص. نر.م. احمق، سپک، بې مغزه، جنې، خوشې.

**پوکاره** (pūkāṛá) ښځ.م. پوکی، پو، پف، اورته درپوکل، تاوده شي ته ورپوکل.

**پوکانه** (pūkāná) ښځ.م. ۱) احباب، کوږی، خوږنی، غوټی، پوکانی؛ ۲) امشانه؛ ۳) بوغی، پوقانه.

**پوکانی ډبره** (pūkāṇay ḍabára) ښځ.م. د مثانې ډبره: مثانې تیږه.

**پوکړی** (pūkáṛay) مف. نر.م. ۱) دوه شوی، لمباړ د ک شوی؛ ۲) لمسول شوی، په قار کړی.

**پوکل** (pūkál) مص. مت. پوکول، هوا ورکول، باد ورکول، له باده ډکول، له هوا ډکول.

**پوکڼانی** (pūkṇāṇáy) ښځ.م. ۱) حب ب. کوږی. بوږبوکی؛ ۲) مثانه، د بولو کڅوړه.

**پوکڼی** (pūkaṇáy) ښځ.م. ۱) کوږی (حب ب)؛ ۲) د الوزولو پوکڼی، متیازاړی.

**پوکی** (pūkáy) نر.م. ۱) پوکاره، پف، پو، پوپ؛ ۲) د خولې هوا یا باد.

**پوکېدل** (pūkedál) مص. ل. ۱) له باده ډکېدل، له هوا ډکېدل؛ ۲) سوځېدل.

**پوگ** (pog) نر.م. و.گ. پوک ۱).

**پول** (pūl) نر.م. ۱) پل، په ویاله، او سیند باندې د تېرېدو راتېرېدو لاره؛ ۲) د افغاني پیسو واحد (یوې افغانۍ) سلمه برخه.

**پولادي** (polādí) ص. نب. ۱) له پولادو څخه جوړ شوی؛ ۲) ټینگ، کلک، مقاومت لرونکی؛ ۳) د یو ډول رنگ نوم دی.

**پول پولک** (pūlpūlák) نر.م. یو ډول تریخ بوټی دی چې په جلدي ناروغیو کارېږي.

**پولک** (pūlák) نر.م. هغه مېخ چې په کوونده کې د پالې د ټینگولو لپاره ورکول کېږي.

**پولکی** (pūlkáy) نر.م. ۱) په تناره پخه شوې د غنمو ډوډۍ؛ ۲) د تناره سیخ، ډوډۍ بېلوونکی.

**پولگی** (pūlgáy) نر.م. وړوکی پول، پلچک.

**پوله** (pūlá) ښځ.م. ۱) برید، سرحد، شپره، بند. ... ۲) ... ۳) ... بولی.

**پوله** (۲) (polá) ښځ.م. ۱) د سترګې ګل، د سترګې اوره؛ ۲) سست، پرده.

**پولۍ** (pūláy) ښځ.م. ۱) تناکه؛ ۲) نیښې شوې جوار؛ ۳) د غنمو ګېډۍ، د ریشتګي کوده؛ ۲) د ازغو کوټه؛ ۳) د ښځو هغه وینښته چې له سر څخه یې خېژي.

**پولی** (pūwálay) نر.م. ۱) پاولی، د ښځو یو ډول پسول دی؛ ۲) جولا، هغه څوک چې تورکر اوبي؛ ۳) هغه تورکر چې میچن پرې پاکوي.

**پولیپ** (poláyp) نر.م. لحمي بواسیر، سرطان، په بدن کې دانې یا واره پارسوب چې ممکنه ده سرطان منځ ته راوړي.

**پولۍ څپولۍ** (polaycápolay) نر.م. د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**پون** (pūn) نر.م. پم، خاربښت، خارش، پوم، یو ډول جلدي ناروغي ده چې ټول بدن خاربښت کوي.

**پونبړی** (pūnbṛáy) ښځ.م. ۱) پونبې په شمېر هغه سپک شیز چې د بوټو په ښخ پورې نښتي وي؛ ۲) سپک شی، کوچنی او ووړ شی.

**پونچی** (pūncáy) ښځ.م. د سپینو زرو غوټۍ چې ښځې یې په تار پېیي او بیا یې د ګاڼې په ډول په لاسو کې اچوي.

**پوندانه** (pūndāná) ښځ.م. د پنبې تخم، پونبه دانه، چګت، پندانه.

**پوند غلی** (pūndgálay) نر.م. پسکی، هغه تونه خرمن چې په شپلیو کې د پوندې خواته وراچول کېږي.

**پوندګلي** (pawandgáli) ښځ.م. پسوند ګلي، پونده توب، د کوچیانو ژوند، غوبه توب.

**پونده** (۱) (pūndá) ښځ.م. د پنبې د بېډۍ لاندېنی برخه؛ ۲) د څپلۍ بند؛ ۳) د بوټ کوری، د بوټ پونده؛ ۴) د توري موتی.

**پونده** (۲) (pawánda) نر.م. ۱) پاونده، ګوجر، غوبه ۲) کوچیان.

**پونډ** (۱) (pūnd) نر.م. خفو، درګیر، خپه.

**پونډ** (۲) (páwnd) نر.م. و.ګ. پاونډ.

**پونډکه** (pūndáka) ښځ.م. سابه، س.ګ. سبزي. په اور باندې پخې شوې بشکې.

**پونډۍ** (pūndáy) ښځ.م. پنډۍ، د پرګي شانه غوښه، د بېډیو د پاسه او د زنګانه لاندې؛ پنبې پسته او نرمه غوښه.

**پونګ** (pūng) نر.م. ۱) زېږنده، اولاد، پیدایښ؛ ۲) د ملخانو بچې اچونه؛ ۳) د ژړا د پیل اواز.

**پونګاړی** (pūngāṛay) نر.م. د هګۍ دننه بچې، لاروا.

**پونګۍ** (pūngáy) ښځ.م. ۱) درمه، تولۍ، د سرنې ژبې، د غنم یا اوربشې د دنډر دواړه سرونه چې پرې او یو سر یې چیت او پوه کړی شي یو ډول آواز ترې راوځي د غې آلې ته پونګۍ وایي؛ ۲) د غره په سر هواره څمکه؛ ۳) د سوداګرۍ مال، د تجارت هغه مال چې په شا باندې یې ګرځوي؛ ۴) نر.م. نیچه، درمه، کړکی، دروزه یا کاغذ چې ګرد تاو شي او چرسیان د چرسو دود ورباندې راکاږي (راکشوي).

**پونه** (pūná) ښځ.م. پشمک، بورمک، اوباشي، نری باران، لړۍ او به شیندنه.

**پوني** (pawnáy) نر.م. و.ګ. پماني.

**پوني** (pūni) ښځ.م.م. پورو هنه، پوژهنه.

**پوڼ** (pūṇ) نر.م. ۱) پنډیکر، د پخوانۍ زمانې د اور لګولو یو ډول پنډیکر؛ ۲) ص.نر.م. ډډ، ګوګ؛ ۲) د سېن یا لګو (خوړ) یوې خواته دخاوړو لمن (څنډه)؛ ۴) پانه، پاپ.

**پوناکه** (pūṇākā) ښځ.م. د څناور توپونه او ورتل، د څناورو ورتل یا پرېوتل.

**پونکه** (pūṇáka) ښځ.م. پرپوکی، خوږنه، حباب.

**پونل** (pūṇál) نر.م. د خوراک په وخت کې د ښاروي سونهار.

**پونول** (pūṇawál) مص. مت. ۱) ږدول، تشول، ګرګول؛ ۲) په ډېرو خبرو د چا تنګول.

**پونه** (pūṇá) ښځ.م. د آس تګ، د آس قدم.

**پونی** (pūṇáy) ښځ.م ۱) و ګ. پوږی؛ ۲) پوسی، لبخی، د ورېو هغه ګونجې چې د ورېښلو لپاره په لاس باندې راتاو شوې وي.

**پونېدل** (pūṇedál) مص. ل. ۱) په مېخ یا مورې باندې د ښاروي پښې تکول؛ ۲) ږدېدل، تشېدل ګرګېدل؛ ۲) په ډېرو خبرو تنګېدل

**پووړه** (powáṛa) ص. ښځ.م. پوواړه یا ناراسته، خیرنه، خچنه او سسته (ښځه).

**پووندګلي** (powadgáli) ښځ.م. ښاروي ساتنه، پرونده توب، شپني، مالداري.

**پوول** (powál) مص. مت. پیول، څرول، ښاروی د خوراک لپاره څرځای کې پیول.

**پوونکی** (powūnkáy) فا. نر.م. څروونکی، پورنی، شپون، غوبه او خربه یا هغه څوک چې مالونه بیایي.

**پوه**[1] (poh) ص. نب. ۱) هوښیار، عاقل، ځیرک؛ ۲) د پوه میاشت، د یوې میاشتې نوم دی.

**پوه**[2] (pūwá) ص. ښځ.م. وتره (ځمکه)، نمناکه، زیمناکه (ځمکه).

**پوها** (pūhā́) اد. پهه، پوهو، د تعجب او حیرانتیا کلیمه.

**پوهاند** (pohā́nd) نر.م. ۱) پروفیسر، استاد؛ ۲) د پوهنتون لوړه علمي رتبه چې د افغانستان

د پوهنتونونو د استادانو لپاره ټاکل شوې ده.

**پوهړ** (pūhǝ́ṛ) ص. نر.م. ساده، بې عقل، ناپوه.

**پوهلنډی** (pohlánḍay) ص. نر.م. لنډاکی، کم‌عقل، کوتاه فکره.

**پوهمن** (pohmán) ص. نر.م. هوښیار، پوه، دانا، د پوهې خاوند.

**پوهنتون** (pohantún) نر.م. دارالفنون، د علمي او لوړو تحصیلاتو موسسه، جامعة.

**پوهنځی** (pohánʒay) نر.م. فاکولته، د لېسانس اخیستلو علمي موسسه.

**پوهند** (pohánd) ص. نر.م. پوهه، هوښیار، پوهاند.

**پوهندوی** (pohándoy) نر.م. ۱) عالم، متخصص ۲) له پوهنمل نه جګه رتبه، د پوهنتون د استادانو څلورمه علمي درجه.

**پوهنمل** (pohanmál) نر.م. له پوهنیار نه جګه رتبه، د پوهنتون دریمه علمي درجه.

**پوهنوال** (pohanwā́l) نر.م. له پوهندوی څخه لوړه رتبه، د پوهنتون د استادانو پنځمه علمي درجه.

**پوهنه** (Pohána) ښځ.م. پویه، علمي پوهه.

**پوهنیار** (pohanyā́r) نر.م. له پوهیالی لوړه علمي رتبه، د پوهنتون دوهمه علمي درجه.

**پوهنیز** (pohániz) نر.م. د پوهنې اړوند.

**پوهو** (pohó) اد. پهها، پهه، د تعجب او حیرانتیا کلیمه، د رشخند کلیمه.

**پوهوالی** (pohwā́lay) نر.م. هوښیاروالی، هوښیار توب، هوښیاري.

**پوهوتلی** (pohwatálay) مف. نر.م. د پوهېدو پوهېدونکی، هغه څه چې د هغه په اړه پوهېدنه ممکنه وي.

**پوهول** (pohawál) مص. مت ۱) پوه کول، لاربوول، په څه خبره څوک رسول؛

**پوهوهو** (pohohū́) اد. په، پها، پوهـو، پیهې، د حیرانتیا او تعجب کلیمه.

**پوهه** (póha) ښځ.م. ۱) علم؛ ۲) عقل، فکر، شعور؛ ۳) د پوه مونث شکل.

**پوهیالی** (pohyā́lay) نـر.م. ۱) د پوهنتــون د استادانو لومړنۍ علمي درجه؛ ۲) ص. نر.م. د پوهې خاوند، پوهېدونکی.

**پوهېدل** (pohedál) مص. ل. ۱) علم لرل، پوهه لرل، مطلب ته رسېدل؛ ۲) ملتفت کېدل، خبير کېدل.

**په**[1] (pə) اد. ۱) د ظرف او آلې له اداتو څخه یو توری دی، یو ســربل دی – په کـور کې؛ ۲) اد. پرې، باندې، پاسه.

**په**[2] (pah) ښځ.م. ۱) پهه، مـرهـم، ملهـم؛ ۲) کـیږ، هغه کړک چې په مات ځای تړلی شي.

**په بله ژبه** (pabalažába) ښـځ.م. په بله وینا، په بل عبارت.

**په پای کې** (papā́yke) ق. تر ټولـو وروســته، په آخر کې، په متې.

**په پټه** (papáṭa) ق. غلې، په غلا، له خلکو په پټه.

**په پسې** (papáse) ق. وروسې، جوخت، متـصـل، مربوط، متوالي.

**په پورې** (papóre) ق. ۱) ورپورې، ورسره، جوخت؛ ۲) بله غـاړه، پورې خـوا؛ ۳) په امـان کې، په سیمه، په لمن کې.

**په پوهېدل** (papohedál) مص. ل. پرې پوهېدل، ورباندې پوهېدل، مطلب ته رسېدل.

**په ترڅ کې** (patrácke) ق. پـه دې منځ کې، په دې کې (د خبرو په ترڅ کې).

**په توګه** (patóga) ق. په ډول، په شان، په څېر.

**په تېره بیا** (patérabyā́) ق. په ځـانګـړي توګه، په خاص طور، سره، په تېره تېره ...

**په ټوپو** (paṭopó) ق. په ټرپکو، په منډه، په ګامو.

**په څنګ** (pacáng) ق. ۱) په اړخ، پـه څـنـګ کې؛ ۲) پرې ډډې ته، پر اړخ ته.

**په څېر** (pacér) ق. په شان، هوندې، په رنګ.

**په حال** (pahā́l) ق. په سد، په واک، په فکر کې.

**په خپله** (paxpála) ق. خـپله، پخپله، پـه ځـان، ځاني، شخصي، شخصاً.

**په خوله** (paxwalá) ق. ۱) په ژبه، په وینا؛ ۲) په خبرو، تقریري، شفاهي، قولاً، په قول.

**په درناوي** (padranā́wí) ق. پـه نمـانځـنـه، پـه درنښت، په احترام.

**په دې څېر** (padecér) ق. په دې ډول، په دې شکل.

**پهر** (pıhár) نر.م. پیینه، پیوند، بې خوالي، (۱۸۰) دقیقې یو پهر کېږي.

**پهره** (pıhrá) ښـځ.م. ۱) پېره، څـوکې، حـفـاظت، نګراني، څارنه؛ ۲) ګارډ؛ ۳) ګزمه.

**پهره دار** (pıhradā́r) ص. نر.م. پېره دار، څوکیدار، نګراني کوونکی، څارونکی.

**پهړ** (pahā́ṛ) ص. نر.م. سرزوری (آس)، هغه آس چې په کېزه کې نه راګرځي.

**پهړه** (pahṛá) ښـځ.م. ۱) د جوګیانو لـنـډه امسـا یا بینت؛ ۲) پره، د ملنګانو د غاړې امېل.

**په زړه** (pazṛá) ق. ۱) په یاد، په زړه کې، په حافظه کې؛ ۲) پر زړه، په رښتیا.

**په زړه پورې** (pazṛapū́re) ق. ۱) زړه ته نږدې، ګران، خوږ، دلچسپ؛ ۲) یاد، په زړه کې.

**په زړه کونه** (pazṛakawā́na) ښځ.م. یادونه، زوتونه، ضبطونه.

**په زیاته** (pazyā́ta) ق. پر دې سربېره، په ډېره.

**په ستنه** (pastaná) ق. ۱) واپس، بېـرته، دویم ځای؛ ۲) ښځ.م. قبر، کانګی، ګرځون.

په شان (pašān) ق. غوندی، مثل، په دول، په څېر، لکه، په دول.

په پښه (pašá) ق. په ګته، په خیر، په ښېګړه. پکار.

په غاړه (pağārá) ق. ۱) په ذمه، پرې پورې، په حواله؛ ۲) اغوستی، په غاړه اغوستی.

په کار (pakār) ص. ۱) ګټور؛ ۲) د اړتیا وړ.

په کارول (pakārawə́l) مص.مت. استعمالول. په کار اچول، په کار راوستل.

په کارېدل (pakāredə́l) مص. ل. ۱) په کار کېدل، کرځني اخستل؛ ۲) خوښېدل.

په کډه (pakaḍá) ق. په کوچ، په سفر. له خپل ښار، سره له یو ځای نه بل ځای ته لېږدېدل.

په ګڼه (pagáṇa) ق. په شریکه، په جمع، په یو ځای، په ډېرو کسان.

په لاس (palā́s) ق. ۱) سمدستي، لاس په لاس؛ ۲) حاضر، موجود؛ ۳) نغد، نقد، په نغدو.

پهلوان (pahlawā́n) ص. نر. م. و ګ. پالوان.

په لوی لاس (pahloylā́s) ق. په خپله خوښه، په قصدي ډول.

په مټ کې (pamáṭke) ق. ۱) له غوندي، په منځ، بله؛ ۲) په ګرانه، په زیار، په تکلیف.

په مخه ښه (pamaxaṣá) ښغ.، خدای په اماني، رخصتونه، مخه ښه، په خدای سپارنه.

په وار (pawā́r) ق. په خپل وار، په خپل وخت، په خپله نښته، په خپل نوبت.

په وار وار (pawārwā́r) ق. ۱) له لسیر، په خپل خپل وار؛ ۲) بیا بیا، مکرر، په څو ځلو.

په ورو ورو (pawrowró) ق. سو که سو که، کرار، کرار، تکیه تکیه.

په وړاندې (pawṛā́nde) ق. په مخ کې، په نښت...

پهوره (pahūrá) ښغ.. ۱) د جوګیانو اسبار ملګ نو بېنت پهره؛ ۲) ګن، جوړه.

پهورۍ (pahūráy) ښغ.. پهره، پهوره.

پهه (pahá) اد. ښغ. م. په، ملهم، پتۍ.

په ها (pahā́) اد. پها، د تعجب له اداتو څخه دی.

په هېر (pahér) ق. په هېره، په غلطي سره، په ناپامي، په خطا سره، په تېروتنې.

په یاد (payā́d) ق. په یادو، په زړه کې، په حافظه کې، په خاطر کې، بې لیکنې.

په یادېدل (payādedə́l) مص. ل. ۱) په زړه کېدل، په زړه کې ګرځېدل؛ ۲) زده کېدل، حافظې ته سپارل کېدل.

پهېر (pahér) ق. په څېر، غوندې.

پهېلول (pahelawə́l) مص. مت. په زخم ملهم کېښودل یا نور څه خوړول یا اوارول.

پی (páy) جن. ۱) شیدې؛ ۲) مستي؛ ۳) اس، م. تصرف، قبضه، ذمه، په واک کې؛ ٤) د څمکې یو خاصه اندازه؛ ٥) پرېکړه، قطعنامه؛ ٦) لسېږي اوبه؛ ٧) د د ریساب د پایاو اوبه؛ ٨) پل، منسار، قدم؛ ٩) پله؛ ١٠) شالمه، داورو د پخولو پی.

پې (pe) ښغ. م ۱) د (پ) توری اواز؛ ۲) د وربانډې، پرې باندې، پرې، په.

پیاڅه (pyāćá) ښغ. م. ۱) دباجرې دوډی، د ایډنو ډوډی، د جوارو ډوډی؛ ۲) د ګبین وږی یا بیوزی د ګبینه یو کندک؛ ۳) ښغ. م. سلدی، شبنځه، په سرکې د ویښتو لاره؛ ۲) د اوبو پیمرکنډه، لبستي یا ویاله کې د اوبو ښه.

پیاخله (pyāxlá) ښغ. م. ۱) پیالخه، چکن، یو ډول کښیده کاري؛ ۲) مفلر، د غاړې دستمال ۳) خوله ...

**پياده** (pyādá) ص. نب. ۱) هغه چې په پښو ځي، پيدل، پلی؛ ۲) په عسکرۍ کې يو مسلک دی. ۳) اد دفتر د ساتلو او پاکولو موظف اجير.

**پياده رو** (pyādaráw) نر.م. د سړک غاړې ته هغه لار چې پلي کسان وربانديې تيرېږي.

**پيارژندي** (pyārẓ̌ándi) ښځ.م. د شپې اوبه خور، د شپې اوبه لګونه، د شپې اوبخور.

**پيارغنده** (pyārgánda) ښځ.م. هغه خاوره چې د کېږدۍ او يا د خيمې څلورو خواوو ته اچول شوې وي چې اوبه خيمې ته داخلې نه شي.

**پيارمه** (pyārmá) ښځ.م. ۱) چېره، ريتاړه، خرڅوری ۲) دخره، کچر کتې هغه تانګ چې په خېټې پورې يې کلکېږي؛ ۳) د کټ لنګه، د کټ کشه؛ ۴) د مچې، پاردوم.

**پيارمه خور** (pyārmaxór) ص. نر.م. ۱) لته خور (څاروی)، چېره خور؛ ۲) هغه ماشوم چې کالي ژر ژر څيري؛ ۳) هغه څوک چې د خپلې ګټې لپاره د چا حق پټ کړي.

**پيازکی** (pyāzákay) نر.م. غرنی يا ځنګلي پياز.

**پيازه** (pyāzá) ښځ.م. ۱) سپيازه، نقصان، هغه ښځه يا حيوان چې د وخت نه مخکې بچی واچوي؛ ۲) ص. نب. ضايع؛ ۳) ښځ.م. راز څرګندېدنه؛ ٤) اوم، خام.

**پياسه** (pyāsá) ښځ.م. ۱) خوړ، لګد، د سېلاب لاره؛ ۲) د سيند تل، د درياب تل.

**پياشه** (pyāšá) ښځ.م. (ج. پياشې) اغېز، پدل.

**پياغله** (pyāǵlá) ښځ.م. ۱) پياخله، رنځور خولې کول؛ ۲) ګلوبند، مفلر، د غاړې دسمال.

**پياګي** (pyāǵí) ق. شا، وروسته، پسې.

**پيالخه** (pyālxá) ښځ.م. د تبې د تکيه کولو ځای چې په تغرې پورې نښتې وي.

**پياله** (pyālá) ښځ.م. ۱) د چايو څښلو لوښی چې لاستی ولري؛ ۲) جام، د شراب څښلو پيمانه.

**پيام** (pyām) نر.م. پېغام، خبر، د چا له خوا بل چا ته د مطلب رسول.

**پيانده** (pyāndá) ښځ.م ۱) ګاږګوتې زلفې، تاوراتاو زلفې؛ ۲) ص. نب. ښکلې، ښايسته؛ ۳) هغه تارچې کان په کې پيل کېږي، هغه لښته چې نيولي ماهين په کې اکېر کېږي.

**پيانو** (pyānó) ښځ.م. د موسيقۍ لـه آلو نه يوه آله ده چې پردې يې ارمونيې ته ورته دي.

**پيانيسټ** (pyānist) ص. نر.م. پيانو وهونکی، څوک چې د پيانو په غږولو کې مهارت لري.

**پياورکی** (pyāwárkay) نر.م. سپلمی، يو ډول بوټی دی چې سپېنې پې کوی.

**پياوړتوب** (pyāwaṛtób) نر.م. قوت، توان، طاقت، تکړه توب، پياوړتيا، غښتلتوب.

**پياوړی** (pyāwáṛay) ص. نر.م. تکړه، غښتلی، قوي، زورور.

**پياوی** (pyāwáy) نر.م. پنځونی، خځله، هغه سپک شيان چې د سېلاب د اوبو په سر روان وي.

**پيايل** (pyāyál) مص. مت. پوول، څرول، د څارويو څرول (پيول).

**پيپ**[1] (pip) نر.م. ۱) مېخکی، مېخک، بسير، د لونګ په شکل د پوزې يو ډول ګاڼه؛ ۲) تيم.

**پيپ**[2] (páyp) نر.م. و.ګ. پايپ.

**پيپړې** (pipṛé) ښځ.م. ج. بړانګې، چڅړې، د غوښې هغه برخه چې نه خوړل کېږي.

**پيپل** (pipál) نر.م. يوه ونه چې غټې او پلنې پاڼې لري او هندوان يې ډېر عزت او احترام کوي.

**پيپلی** (pipláy) نر.م. يو ډول اوږده مرچ دي چې په دارو کې کارېږي.

**پیپنی** (pepnáy) ښځ.م. کمیس، خت، خلکی، د ارتو لستونو کمیس.

**پیټ** (pit) ص. نر.م. ج. ۱) چیت، چپې؛ ۲) تیټ، پلن، اوار، د هګ ضد.

**پیټاو** (pitā́w) نر.م. ۱) پېټاوی، د لمر ګرمي؛ ۲) په ژمي کې لمر ته د کېناستو ځای؛ ۳) د غر هغه اړخ چې لمر ته مخامخ وي.

**پیټاوه** (paytā́wá) ښځ.م. وړینه یا د خمتا هغه اوږده ټوټه چې په پښو باندې تاوېږي.

**پیټل** (pitál) نر.م. یو ډول فلز.

**پیټلي** (pitáli) نر.م. حلبي، فلزي.

**پیټونه** (pitawá na) ښځ.م. پیټونګ، چیټونه، پلنونه، چیرونه، په زور سره پلنونه.

**پیټه** (pitá) ښځ.م. ۱) د اندازه کولو فیته؛ ۲) د ټیپ ریکارډر فیته؛ ۳) د لیکلو د ټایپ فیته؛ ۴) پرې شوی رښکی چې نجونې یا ښځې یې د ویښتانو په ترلو یا په کالیو کې استعمالوي.

**پیټی** (pitáy) نر.م ۱) یو ډول تویک؛ ۲) ص. نر.م. چټی، چیټ؛ ۳) چیټ پوزی.

**پیټي**[1] (piti) ښځ.م. ۱) د غابنو خیرې؛ ۲) د غرکې منګ، د شلومبو د غرکې منګ.

**پیټي**[2] (páyti) ښځ.م. پاتې، پیاتي، پاخه دال.

**پیټېدل** (pitedál) مص. ل. چیریخېدل، چیټېدل، پلنېدل، د زور (فشار) په واسطه پلنېدل.

**پیټیکانتروپ** (pitikāntróp) نر.م. د یوه تاریخي ژوي نوم دی چې هډوکي یې د جاوا په ټاپو کې لاس ته راغلي دي.

**پېټ** (pet) نر.م. ۱) تو، لعنت، پېغور؛ ۲) پېټی، پشتاره؛ ۳) ق. بالکل، هرګز.

**پېټار** (petā́r) ښځ.م. یو ډول ټوکرۍ ده چې خوله یې تنګه او خېټه یې ارته وي.

**پېټک** (peták) نر.م. ۱) مغزروني، د ناوې د مغز ښکاره کولو په وخت څه ورکول (مغز پېټک)؛ ۲) د ښځې ګانه؛ ۳) نوي زېږېدلي ماشوم لپدو ته څه وررورل.

**پېټل** (petál) مص. مت. لعنت ویل، ملامتول، ملامت کول، بې عزته کول.

**پېټن** (petán) نر.م. ۱) کرکه، نفرت، کروی‌یې؛ ۲) کریکه، کریغه، کریږه.

**پېټنه** (petána) ښځ.م. ۱) ملامتونه، بې عزته کونه؛ ۲) نفرت کول، کرکه کول.

**پېټو** (petū́) نر.م. لعنت ویونکی، ملامتوونکی، کرکه کوونکی.

**پېټوار** (pitwā́r) نر.م. و ګ. پیټار.

**پېټه** (petá) نر.م. ۱) یو ډول کدو؛ ۲) ص. نر.م. مور، بې اشتها؛ ۳) پټ زړه.

**پېټ هېټ** (pethét) نر.م. لعنت، بدرد، پېغور.

**پېټی** (petáy) نر.م. ۱) پنډ، وځه، پشتاره، پنډه؛ ۲) ذمه واري ذمه؛ ۳) عمل، کړه؛ ۴) ص. نر.م. زیاتی، بار، هغه څه یا څوک چې پر چا بار تحمیل شوی وي.

**پېټۍ** (petáy) ښځ.م. ۱) کمربند، د خرمنې ملابند؛ ۲) د لرګي صندوق، د ګټې سندوخ.

**پېجاو** (pejā́w) ص. نر.م. پاک، پیجو، پاکیزه.

**پېجاوېدل** (pejāwedál) مص. ل. پاکېدل، صفا کېدل، ستره کېدل، پاکیزه کېدل.

**پېج مخی** (pejmáxay) ص. نر.م. پیی مخی، ښکلی، ښایسته، ګلالی، په زړه پورې.

**پېچ** (peč) نر.م. ۱) ول، تاو؛ ۲) د پېچش ناروغي؛ ۳) سرکشي؛ ۴) پېچي مېخ، بولټ؛ ۵) کلي،

**پېچاپېچ** (pečāpeč) ص. نب. ۱) پېچان، تار راتاو، ول ول؛ ۲) ګلګوتی، ګورګوتی.

پېچان (pečā́n) ص. نر.م. پېچاپېچ.
پېچان پېچان (pečānpečā́n) ص. نب. کاږه واږه، لور په لور، یو مخ په بل مخ.
پېچ پېری (pečpā́ray) ښځ.م. بلبل غوندې یوه مرغۍ ده چې په سر باندې تاج لري.
پېچ پلی (pečpā́lay) نر.م. د یوې یوناني دوا نوم دی.
پېچتاو (pečtā́w) نر.م. پېچتو، پېچکش.
پېچش (pečíš) نر.م. ۱) د خېټې مرور، د معدې یو ډول ناروغي ده؛ ۲) اختلاف، اختلال.
پېچک (pečák) نر.م ۱) د تارونو تخته؛ ۲) چوپړی اوبړی، غوړبی؛ ۳) عشقه پیچان، یو ډول گل.
پېچکاري (pečkā́ri) ښځ.م. ۱) ستن، انجکشن؛ ۲) هغه دوا چې بدن ته داخلېږي.
پېچل (pečā́l) مص. مت. غړل، غښتل، تاوول؛ ۲) غامضول؛ ۳) مشاجره، نزاع، خبره اوږدول.
پېچلتیا (pečaltyā́) ښځ.م. پېچلتوب، جړتوب، جړتیب، جړه.
پېچلی (pečā́lay) مف. نر.م. ۱) تاو راتاو، غړل شوی؛ ۲) سخت، غامض.
پېچ مخی (pečmáxay) نر.م. پې مخی، ښکلی، ښایسته، حسین.
پېچ مری (pečmarā́y) ښځ.م. ۱) کونجکه، یو ډول اوږده مرۍ، یو ډول توره یا شنه مرۍ چې کوچنیانو ته یې تر پښو تړي؛ ۲) یو ډول سپینه مرۍ چې کوچنیانو ته یې په غاړه کې اچوي.
پېچموزې (pečmóze) ښځ.م. پېښاري، توکې، ملنډې، مسخرې، پسخند، وشتې، پېچمې.
پېچمې (pečmé) ښځ.م. ملنډې، مسخرې.
پېچواړی (pečwāŗáy) ښځ.م. پېچوړی، پچاړې، پکاریږي، اس و پېښو د تړلو پړی.

پېچوان (pečwā́n) نر.م. یو ډول چلم چې نل یې ډېر اوږده وي.
پېچوتاب (pečotā́b) ص. نر.م. ۱) تاو راتاو، گاږگوتی؛ ۲) نر.م. ناکراري، بې قراري.
پېچوخم (pečoxā́m) ص. نر.م. کوږوږ، کجوبېچ، پېچلی.
پېچول (pečawā́l) مص. مت. پېچل، تاوول، تاوراتاو کول، تاوراتاوول.
پېچومه (pečomá) ښځ.م ۱) پورته کېدنه، ختنه، جگېدنه، لوړېدنه؛ ۲) پېچومې.
پېچومی (pečūmáy) نر.م. مخ په لوړ، مخ په پورته، ستغ؛ ۲) جگه لاره..
پېچول (pečawā́l) مص. مت. پېچل، تاوول، تاوروتاو کول،
پېچونکی (pečūnkáy) فا. نر.م. ۱) پېچونی، تاوونکی، غړونکی؛ ۲) پتونی، پځونی.
پېچه (pečá) ښځ.م. د ښځو د غوږ لاندې کوڅې کړۍ وېښتان.
پېچې (pečé) ښځ.م. خوله بندونه، خوله بندکه.
پېچېدگي (pečidágí) ښځ.م. مشکلوالي، مغلق، گرانوالي، سختوالي.
پېچېدل (pečedál) مص.ل. ۱) تاوېدل، تاوراتاو کېدل؛ ۲) کړېدل، کوږ ووږ کېدل.
پېچېده (pečedá) نر.ج. ۱) تاوېده؛ ۲) گوږ گوت کېده، کړېده، کاږگوت کېده.
پېخ (pex) نر.م. ۱) صبر، حوصله، زغم، برداشت؛ ۲) شر، پسات، فساد.
پېخانی (pexānáy) نر.م. لېږ غوندې، پوتی، خسوزی، خسوسکی، ذره، دوشکی.
پېخکه (pixká) ښځ.م. پېخه، پېخکی، خندا، شادی خنده، بلو د بلو خنده.

**پېڅل** (pecə́l) مص. مت. پېڅل، صبرکول، حوصله کول، زغم کول، تحمل کول.

**پېڅول** (pecawə́l) نر.م. ۱) د کېږدۍ پرده، د خېمې پرده؛ ۲) هغه لوی پوزی چې د کوټې غولي ورباندې فرشېږي.

**پېڅه** (pecə́) ښځ.م. ۱) صبر، حوصله، زغم، تحمل؛ ۲) قسمت، تقدير؛ ۳) ص. نر.م. شله (سړی)؛ ۴) منه، سرتمبه سړی؛ ۳) بې‌ننې (سړی).

**پېڅيالی** (pecyālə́y) ص. نر.م. صبرکوونکی، زغم‌زونکی، تحمل کوونکی.

**پېخ** (pex) نر.م. خندو، ښنکر، خندوکی.

**پېخاره** (pexārá) ښځ.م. پشاري، د پسونو هغه پچې چې ترکلم لاندې نښتې وي.

**پېخال** (pexā́l) نر.م. د مرغيو فضله مواد.

**پېخر** (pexár) ص. نر.م. زښت ډېر، پرېوانه ...

**پېخل** (pexál) مص. مت. رنځور خولې کول، په بيمار خوله راوستل.

**پېخي** (pixí) ص. نر.ج. لوی، غټ او بې‌ډوله غاښونه (داړي).

**پيدا** (paydā́) ص. نب. ۱) زېږېدلی، پيدا شوی؛ ۲) جوړ، تيار؛ ۳) بلد، روږدی؛ ٤) ښځ.م. موندنه، پيداکول؛ ٥) څرگند، جوت، ښکاره.

**پيدا کول** (paydākawə́l) مص. مت. ۱) موندل، لاس ته راوړل، منځ ته راوړل؛ ۲) زېږول.

**پيدا کېدل** (paydākedə́l) مص. ل. ۱) موندل کېدل، لاس ته راوړل کېدل؛ ۲) گټل کېدل؛ ۳) خلق کېدل، جوړېدل؛ ٤) زېږېدل.

**پيدا گر** (paydāgár) ص. نر.م. پيداوښتگر، زېږندوی، گټندوی.

**پېداگوژي** (pedāgozí) ښځ.م. ۱) د ښوونې او روزنې علم؛ ۲) د ښوونې او روزنې موسسه.

**پيداوار** (paydāwā́r) نر.ج. ۱) محصولات، حاصلات؛ ۲) فصل؛ ۳) گټه، فايده.

**پيداوښت** (paydāwáṣt) نر.م. ۱) پيدايښت، زېږېدنه، منځ ته راتلنه، خلقېدنه؛ ۲) گټه.

**پيداوېدل** (paydāwedə́l) مص.ل. ۱) پيدا کېدل، منځ ته راتلل؛ ۲) موندل کېدل؛ ۳) زېږېدل.

**پيدايښتي** (paydāyə́ṣti) ص. نب. ۱) پيدايښت، دزېږېدو؛ ۲) اصلي او فطري.

**پيدايښت** (paydāyáṣt) نر.م. پيداوښت، پنځېدن، پنځون، زېږ، زېږون، زېږد، زېږېدنه.

**پيدل** (peydál) ص. نر.م. ۱) په پښو، پلی، پياده؛ ۲) د شطرنج پياده، موري؛ ۳) پياده عسکر.

**پيډ** (piḍ) ص. نر.م. پيډی، کجي، کچي، کوډی، پيډن، کوروښبی، کچل، د کږو پښو خاوند.

**پيډل** (paydál) نر.م. پايډل، د بايسکل هغه ځای چې پښه ورباندې ايښودل کېږي.

**پير** (pir) ص. نر.م. (ج. پيران) ۱) مرشد، بزرگ، لارښوونکی؛ ۲) سپين‌ږيری، بوډا، ضعيف؛ ۳) مشر؛ ٤) نر.م. دوشنبه، د گل ورځ.

**پېر** (per) نر.م. ۱) دور، چکر، گردش؛ ۲) رنگ، انداز، خيال؛ ۳) پور، قرض، دين.

**پير اميد** (payrāmíd) نر.م. هرم، هر هغه شی چې کښتنی برخه يې پلنه او سر يې نری وي.

**پېراني** (perānáy) ص. نر.م. ۱) پېرياني، پېريانو نيولی؛ ۲) رو. څوک چې د مېرگيو په عصبي ناروغی اخته وي.

**پېرانه** (perāná) ښځ.م. هغه لوړ ځای چې د گنبو گانی پرې گرځي.

**پېرختوني** (perxatūné) ښځ.م. پېروته، پېروتي.

**پېرخته** (perxáta) ښځ.م. پېروته، پېروتي، پروتي.

**پېرړ** (perṛ) ص. نر.م. ... پېرړ

**پېرزو** (perzó) نر.م. لور، لورينه، پېرزوينه.
**پېرزوينه** (perzoyána) ښځ.م. لوربينه، ښه نيت ځرګندونه، رواداري.
**پېرشوني** (peršonáy) ښځ.م. شينځه، د سر د ويښتو لاره.
**پيرکی** (pirakáy) نر.م. ۱) بولاني؛ ۲) وړوکی پير، د پير اسم تصغير.
**پېرګر** (pergár) ص. نر.م. پېښې کوونکی. تقليد کوونکی. پېښمار. لوبغاړی.
**پيرګی** (pirgáy) نر.م. ۱) پلې، دځمکې د ونې دانه؛ ۲) پارو، خوی، بيم، راشپيل؛ ۲) څلور غابنی، درې غابنی، سکو.
**پېرل** (perál) مص. مت. ۱) اوبدل، اودل، بونبل؛ ۲) مشکنې پېيل، مرې پېيل؛ ۳) پېرودل، اخيستل، رانيول.
**پېرمخی** (permáxay) ص. نر.م. ښکلی، پې مخی، ښايسته، حسين، ډولي.
**پيرو** (payráw) ص. نر.م. ۱) مريد، پسې چا پسې تلونکی، تعقيبوونکی؛ ۲) نر.م. د يوه مرغه نوم.
**پېروان** (perwán) نر.م. ۱) پربوان، انول، اوره، جوره، د ځاريو هغه کڅوره چې د بچي تر پيدا کېدو وروسته د مور له نسه راووځي.
**پېروپلور** (paeroplór) ق. رانيونه او خرڅونه، راکړه ورکړه، سوداګري.
**پېرود** (peród) نر.م. اخيسته، اخيستنه، رانيونه.
**پېرودل** (perodál) مص. مت. اخيستل، رانيول، په بيه اخيستل.
**پېروزه** (perozá) ښځ.م. ۱) فيروزه، يو قيمتي کاڼی دی چې رنګ يې شين (آسماني) وي.

**پېروزه** (peróza) ښځ.م. کامياب، بري مند. سرخرو، فاتح
**پېروزی** (perozáy) نر.م. ساپه، صافي، جرن. هغه توکر چې شپان او سامان پرې پاکېږي.
**پېروزي** (perozí) ښځ.م. ۱) بري، کاميابي؛ ۲) ظفر، فتح.
**پيرومېتر** (payromītar) نر.م. تودوخه اندازه کوونکی، حرارت سنجوونکی.
**پېرونکی** (perūnkay) ف. نر.م. ۱) بوونکی، اوبدونکی؛ ۲) اخيستونکی، رانيوونکی.
**پېرونه** (perawāna) ښځ.م. پېرودنه، اخيستنه.
**پېروني** (perwūne) ښځ. ج. پروين، ثريا، داتګورو وانبکي غونډې څو ستوري دي.
**پېرونه** (peroṇá) ښځ.م. د ګاټې ميدان چې غوايي په کې ګرځي.
**پېروی** (peráway) نر.م. رش، قيماق، قيماغ، د شيدو سر، پروی، ارباش.
**پيروي** (payrawí) ښځ.م. ۱) تقليد، ۲) اطاعت. په چا پسې تلنه، د چا حکم منته.
**پېره** (perá) ښځ.م. (ج. پېرې) وار، نوبت، دفعه.
**پيره** (payrá) ښځ.م. ۱) ګردش، چکر، ګرځېدنه؛ ۲) څوکي، ساتنه، پيره، پهره.
**پيره دار** (p(ay,e)radár) فا. نر.م. پيره کوونکی، څوکيدار، محافظ، پيره والا.
**پېری** (peráy) نر.م. (ج. پېريان) جن.
**پېريان اوبه** (peryānobá) ښځ.م. سراب، د ګرمې په موسم کې په صحرا کې يا په پاخه سړک د اوبو غونډې منظر ليدل.
**پېريان کټ** (peryānkaṭ) نر.م. يو ډول څلور ګوټيز کاڼی دی.
**پېرياني** (peryānī) ص. نر.م. ۱) جندي، جني؛

۲) په صرعي اخته، په شش اخته.

**پېړېدل** (peredál) مص. ل. اخيستل، راښيول، اخيستل کېدل، پېړودل.

**پيېړ** (piṛ) نر.م. بوس، پرړه، چوه.

**پېړ** (peṛ) ص. نر.م. ج. ۱) غټ، پنډ؛ ۲) نر.م. د لرګي توتې؛ ۳) د شربت راويستلو کار.

**پېړتوب** (peṛtób) نر.م. پېړوالی، پرېړوالی، پنډوالی؛ پنډتوب.

**پېړزه** (peṛzá) ښځ.م. ۱) دخاورو ډېرۍ، د خاورو غونډۍ؛ ۲) د غره اوچته (جګه) څوکه.

**پېړغو** (peṛğū́) نر.م. و ګ. پرغو.

**پېړمار** (peṛmā́r) ص. نر.م. ګانۍ مار، هغه څوک چې پر ګانۍ له ګنيو شربت باسي.

**پېړمن** (peṛmán) ص. نر.م. ۱) لټ، ناراسته؛ ۲) چاغ او شلنډ، مزی، غوټ.

**پېړو**[1] (peṛū́) نر.م. د شپانه حق الزحمه، د شپون مزدوري.

**پېړو**[2] (peṛó) ص. نر.م. بر لرونکی، سوررور، پلن، د اورده ضد، برداره.

**پېړوده** (peṛodá) ص. نب ۱) ځير، ديږ؛ ۲) سخت، کلک.

**پېړوالی** (peṛwā́lay) نر.م. پنډوالی، پلنوالی، غټوالی، سختوالی.

**پېړه** (peṛá) ښځ.م ۱) زغاله، ځغاله؛ ۲) شير پېره.

**پېړۍ** (peṛáy) ښځ.م. ۱) چسوکي؛ ۲) د مېړزانو د جنګولو په وخت کې د ننداره کوونکو دايره؛ ۳) د عمر يوه ټاکلې موده، يو نسل؛ ٤) د پېره موړه؛ ۳) قرن، ۱۰۰ کاله.

**پېز** (pez) نر.م. پيوند، پنځرک، رفو.

**پيزار** (payzā́r) نر.ج. ۱) موچنې، پنې؛ ۲) څپلۍ، کوښې، د پښو کولو شی.

**پېزر** (pezár) نر.م. يو ډول تريخ بوټی دی.

**پيزر** (payzár) نر.م. يو ډول کانی دی چې مردکې ورڅخه جوړوي.

**پېزګر** (pezgár) ص. نر.م. پېوندګی، رفوګر.

**پېزل** (pezál) مص. مت ۱) پيوندول، پنځرک کول، رفو کول، مرمت کول؛ ۲) پوزې اوبدل.

**پېزو** (pezó) ص. نر.م. پوزمير، پزه ور، پوزور.

**پېزوان** (pezwā́n) نر.م ۱) د پوزې ګاڼه؛ ۲) هغه پړی چې د ښاروړو پوزې او سرته اچول کېږي؛ ۳) د پوزې خلې، د نهر، هغه خلې چې د پوزې په سوري کې يې ايښی وي؛ ٤) پېزوانک، د څپليو د دوو ګوتو په منځ کې تسمه؛ ۵) په سلواغه کې د پړي ترلو ځای.

**پېزواندی** (pezwā̄ndáy) ص. نر.م. ۱) پېزواني، هغه ښاروی چې پزې ته يې پېزوان اچول شوی وي؛ ۲) د پيزار پېزوان.

**پېزوانۍ** (pezwā̄nay) ښځ.م. ۱) هغه نجلۍ چې پېزوان يې اچولی وي؛ ۲) معشوقه، دلبره.

**پېزوانی** (pezwā́nay) نر.م. چوړوکی، بينيګک، کليک، هغه لرګی چې د هغه په واسطه د يبوې رون له ژغ (جغ) سره تړل کېږي.

**پېزه** (pezá) ښځ.م. ۱) تاج؛ ٤) بولک، د بولو د څڅېدلو ناروغي.

**پيزي** (payzi) ص. نر.م. چينجن، شيته، مړاوی، خزان شوی، مړجينګ.

**پېزۍ** (pezáy) ښځ.م. ۱) توری، تکی؛ ۲) تاکيد.

**پيزۍ** (pizáy) نر.م. پوزی، بوريا، انډېری.

**پيزي توب** (pizitób) نر.م. شيته توب، مړاوي والی، مړاوي توب.

**پېزېدل** (pezedál) مص. مت. مړاوي کېدل، شيته کېدل، پيزي کېدل.

**پېژاند** (pežā́nd) ص. نر.م. پېژند، د پېژندګلو، واقف، شناسا، بلد.

**پېژنتون** (pežantū́n) نر.م. د پوهنې اداري يا موسسې د ذاتي پېژانګه.

**پېژند** (pežánd) نر.م. پېژندون، پېژندنه.

**پېژندپانه** (pežandpāná) ښځ.م. د هويت پانه، د پېژندلو پاڼه، پېژندليک.

**پېژندګلوي** (pežandgálwi) ښځ.م. پېژندګلي، شناخت، معرفت.

**پېژندل** (pežandə́l) مص. مت. پېژندل، بلديت لرل، اشنايي لرل.

**پېژندوی** (pežandū́y) نر.م. ۱) پېژندونکی، معرفت لرونکی، پېژندونی، واقف؛ ۲) اشنا.

**پېژندويي** (pežandóyi) ښځ.م. پېژندګلوي، پېژندنه، آشنايي، اوشارتيا، مشهورتيا.

**پېژونی** (pežū́nay) نر.م. د پښې قلم، د آهنګر د اوسپنې د پرېکولو قلم.

**پېژوی** (pežwáy) ښځ.م. بلې، چيچه، ښنولی.

**پېړل** (pezə́l) مص. مت. ټوټه کول، ځيرل، پرې کول؛ ۲) قطع کول؛ ۳) تورول، تراشل.

**پېړونی** (pezū́nay) نر.م. توکيا، توکه، ساتول، کټېره، هغه آله چې غوښه پرې ټکوي.

**پيس** (pis) نر.م. ۱) کبر، غرور؛ ۲) برګي، د برګي ناروغي؛ ۳) قطعه، د شعر ټوټه، نمايشنامه.

**پيساني** (pisā́nay) نر.م. پيساني، ښخوشکی، لېرشي، پوټسکی، ذره، پيخاني.

**پيستن** (pistán) نر.م. پشتن، پسر ميخانيکي ساختمان دی چې په موټرونو کې د ګاز په انفجار سره د سلنډر په دننه کې حرکت کوي.

**پېسر** (pesə́r) ص. نر.م. ۱) بدرنګ، بدشېره، بد شکل؛ ۲) بې خونده او بې رنګ شيز.

**پيسکوټ** (piskót) نر.م. فيس کوټ، د پټو يوه لوبه ده.

**پيسکوړک** (piskoṛák) نر.م. تش ورى، پينک دانه، پوچې دانې، باد وهلې ورى.

**پيسلی** (pisláy) نر.م. د غمکي هغه برخه چې د پنبه کولو په وخت کې وچه پاتې شي.

**پيسمن** (pismán) ص. نر.م. مغرور، بهاخمن.

**پيسمی** (pismáy) نر.م. پيشلمی، چرپانګی.

**پيسه**[۱] (paysá) ښځ.م. ۱) يو ورو وسکه، ماتې پيسې، پول سياه؛ ۲) روپۍ، سکه.

**پيسه**[۲] (pisá) ښځ.م. پيرشاني، شينخه، د ويښتو لاره.

**پيسی** (pisáy) ص. نر.م. د پيس په ناروغۍ اخته، د برګي په ناروغۍ اخته.

**پيسې والا** (paysewālā́) ص. نب. شتمن، بډای، د مال او دولت خاوند، د شتو خاوند.

**پيش** (piš) نر.م. نر پيشو، بليکي، پيشی، نرغوټ، پش، پشی.

**پېښ** (peš) نر.م. ۱) پيښ، ضمه، د نيم واو د ښکاره کولو اواز؛ ۲) ق. ورته پيدا، دوچار، مخامخ، وراندې.

**پېشاب** (pešā́b) نر.ج. تشې متيازې، بولې.

**پيشاړه** (pišāṛá) ښځ.م. ۱) ملنډه وهنه، ريشخند، تمسخر، استهزا؛ ۲) حمله، يرغل.

**پيشاک** (pišā́k) نر.م. رشک، بوني، د سپوني ناروغي، يو ډول سپوني، داد، د جرب ناروغي، يو ډول جلدي ناروغي.

**پېشانه** (pešāná) ښځ.م. ښکلې او ښايسته کور.

**پيشپو** (pišpó) ښځ.م ۱) يو ډول لوبه ده، پيشوبازي ۲) په اتڼ کې د پيش اواز؛ ۳) د ښکځو يو ډول اتڼ دی.

**پیښتری** (pištáray) نر. م. پېچلېری، یو ډول ... رابې او خوږ ړوبه سابه.

**پیښتکی** (pištákay) نر. م. ریښه. اسرپېچه.

**پیښتول** (pištawúl) نر. م. ۱) پېښتول، شاتیر، ریښه، پش؛ ۲) چت؛ ۳) بلی، چچه.

**پیښته مغز** (pištamágz) نر. م. و گ. پسته.

**پېښک** (pešák) نر. م. ۱) سپونې، یو ډول جلدي ناروغي ده؛ ۲) دکلاد ختو یو شاباسي، د کلاد دور د پخسې د یو د شاباسي اندازه.

**پیښکارل** (piškārál) مص. مت. پیښورابلل، پیښې په پیش پیش راغوښتل.

**پیښکنډی** (piškandáy) نر. م. ۱) پیښنگوری، د پیښې بچی؛ ۲) د یوې کورنۍ وړوکی غړی.

**پېښکوزه** (peškawzá) ښځ. م. ستود، پېچکوزه، پېښقوزه، پېش قبضه.

**پیښکه** (pišáka) ښځ. م. ۱) پیښې، پیښو، پش؛ ۲) پشې، یو ډول حشره ده.

**پېښکی** (peškáy) ص. نر. م. په‌بوني اخته، په سپوني اخته، د سپلمې په ناروغی اخته.

**پېښل** (pešál) مص. مت. سړول، یخول، په چمچه خواړه سړول او خوړلو ته برابرول.

**پېښلره** (pešlára) ښځ. م. و گ. پېښتري.

**پېښلمی** (pešlámay) نر. م. پېسمی، پښمنی، پښمنی، سحری، چرگ بانگی.

**پېښلی** (peštālay) صف. نر. م. سور شوی، یخ شوی، په کاچوغه باندې سور شوی خوراک.

**پیښمنډی** (pešmandáy) ښځ. م. ریشخند، ټوکې، پیشرد، ټوټې، پریچي، پېښارې.

**پیښنگ** (pišáng) نر. م. د قافلې د سر تښو.

**پیښنگوری** (pišangúray) نر. م. پشکوټی، پیښنگوری، پیشو بچی.

**پیښو** (pišó) ښځ. م. پیښې، پشه، بلیکی.

**پیښوبازي** (pišobāzí) ښځ. م. ۱) خوشامندي چاپلوسي؛ ۲) د دوو کسانو ترمنځ لانجه.

**پیښوپړی** (pišopráy) ښځ. م. درسی د شکرلو لوبه، د پېړي کښولو لوبه، راکاږی وابنلوبه.

**پیښوخوټ** (pišoxút) نر. م. ۱) کنه، کانه، گوری؛ ۲) د اسفنج په شبر سوري لرونکی؛ ۳) د تبېږي گل، گل سنگ؛ ٤) د یوې ونې تخم چې په تار کې یې پېیي او د ښارویو غاړې ته یې وراچوي.

**پېښورز** (pešwárz) نر. م. جامن، د گوا کمبس، جابی، پېښواز.

**پیښوگی** (pišogáy) ښځ. م. ج. ۱) کمکی پیشو؛ ۲) پشی، یو ډول خزنده ده چې د شپې ربا کوي او د نباتاتو پاڼې خوري.

**پیښولمی** (pišolámay) نر. م. سورجیجنو، جینجو، جنجو، خاکشیر.

**پیښومالگه** (pišomālgá) ښځ. م. لنډی، غلبیل، خرې تنده، د کوچنیانو لوبه ده.

**پیښومپړی** (pišompráy) ښځ. م. یو ډول لوبه ده، توپ بازي.

**پیښونکی** (pešūnkáy) فا. نر. م. په‌خمڅې یا کاچوغه د تاوده شي سړوونکی.

**پیښونگړی** (pišongŕáy) نر. م. د پیشو بچی، پیښنگوری، پښونگور، پشینگور.

**پیښونگړی** (pišongŕáy) ښځ. م. انووخر، لته پېر، خربازي، کلابازي، یو ډول لوبه ده.

**پېښوی** (pešwáy) ښځ. م. څمڅه، چمچه، خمڅی.

**پېښه** (peša) ښځ. م. (ج. پېښې) ۱) چار، کسب، هنر؛ ۲) نکل، ټوکه؛ ۳) عادت؛ ٤) کچنیتوب؛ ۵) خړیکه، مغزو کې اور بلېدنه.

توزی (tozáy) نـر.م. ۱) هـغـه پند توکـر چې د کیږدۍ پر سر یې ګنډي؛ ۲) یوه خځنده ده.

توزیز (tozíz) ا. اره تره، بندوس، چاره، تابیا.

توزیع (tawzí'a) ښځ.م. وېشنه، تقسیمونه، برخي برخي کونه، وند وند کونه.

توژنه (tožána) ښځ.م. چمن، شنیلی، د یو ډول وښو نوم دی.

توړاند (tozánd) ص. توړونکی، کنده کار، حکاک.

توړل (tozál) مـص. مت. ۱) تراشـل، رنده کـول؛ ۲) پاکول؛ ۳) مښل، لګول.

توړلي (tozále) ښـځ. ج. ۱) توتـنـکي، پـتـرکي؛ ۲) د توړلي ښځمنه بڼه.

توړند (tozánd) نر.م. رنده، تراش، توړنی، خراد.

توړندی (tozanday) نر.م. رنده، تراش، توړۍ.

توړنه (tozána) ښځ.م. تراشنه، رنده کونه، توړنګ.

توړون (tozún) نر.م. تراش، حک.

توړونی (tozúnay) نـر.م. رمبی، د ختې توړنې رمبی، پخسه تراش، ګلبر، ختتوړونی.

توړۍ (tozáy) ښځ.م. رنده، توړندی، تراش.

توس[۱] (tus) نـر.م. ۱) خـوس، خوسـماري، پته لګونه؛ ۲) د پرو توس؛ ۳) یـو ډول نرمه، نازکه او ډولي شړۍ یا کمپله.

توس[۲] (taws) نر.م ۱) ګرمي، تاو، د بدن دننني تودوخه زیاتېدنه؛ ۲) قار، دباو.

توسط (tawasut) ق. په وسیله، په ذریعه.

تـوسـعه (tawsi'a) ښـځ.م. پراختـیا، ارتـوالی، پراخوالی، وسعت، انکشاف.

توسل (tawa'sul) نـر.م. وسـیله مـوندنه، وسیله کول، اړیکه پیدا کونه، ځان نېږدې کونه.

توسن[۱] (tawsán) نر.م. سرکش اس، یاغي اس.

توسن[۲] (tosán) نر.م. سبب، وجه.

توسن[۳] (tūsan) ص. نـر.م. ۱) شـومن(سپی)، بیمار(سپی)؛ ۲) وږسترګی (سړی)، مریض.

توسنپېر (tosanpér) ګر. علتیه حالت.

توسنتړوییکی (tosantarwayíkay) ګر. سببي یا علتي ربط.

توسند (tawsánd) ص. نر.م. ۱) له تندې او ګرمي نه سوی الوی؛ ۲) توده او وچه مېره یا سیمه.

توسنتوب (tawsantób) نـر.م. ۱) ګـرمېدنه، تودېدنه؛ ۲) ژرژړوچېدنه او تږي کېدنه.

توسنغونډله (tosanğandlá) ګر. علتیه جمله، سببي جمله.

توسنکړ (tosankár) ګر. علتیه یا علي فعل.

توسنوالی (tawsanwālay) نر.م. د بېر تاو، زیاته ګرمي، ډېره تودوخه، توسندوالی.

توسنوییکی (tosanwayíkay) ګر. علتیه ادات، د علت حرف.

توسول[۱] (tawsawál) مص. مت. پرسول.

توسول[۲] (tusawál) مص. مت. ۱) یو شه ته د چا مینه او ډېره لېوالتیا پیدا کـول؛ ۲) ترسول؛ ۳) قارول؛ ٤) خورول، کړول.

توسولی (tusawálay) مف. نـر.م. ۱) هیله من کړی، شوقمن کړی، ارزومن کړی، په تمه کړی؛ ۲) په یوه شي پسې کړولی، زوکلولی.

توسه (tosá) ښځ.م. وسیله، سبب، علت، ذریعه.

توسېدل[۱] (tusedál) مص. ل. ۱) تپېدل، په لته کې کېدل(سپی)، کړېدل؛ ۲) زوکلېدل.

توسېدل[۲] (tawsedál) مـص. ل. ۱) ترسېدل، ګبعې نیول/اخیستل؛ یو شي ته لېوال کېدل؛ ۲) دغـوا شیدې په غـولانځـه کې یا د معدې شیدې په تې کې پاتې کېدل، د هغه پرسېدل او کلکېدل.

**توسیع** (tawsí') ښځ.م. ۱) پراخښت، ارتوالی؛ ۲) ارتونه، پراخونه.

**توش** (tawš) نر.م. ګرمي، تاو، توږښ، توس.

**توشدان** (tušdán) نر.م. قطارونمه، غارکی، کمربند، ملاپټه، ملاوستني، ګردنی.

**توشک** (tošák) نر.م. (ج. توشکونه) نیالی، نالی، ګډیله، توشکه، تولایي.

**توشل** (tawšál) ص. نرم. ۱) رغی، درګ، درګی، رغی یا اټیته سطحه؛ ۲) تیټ.

**توشول** (tušawál) مص. مت. شکارل، ویشکه کول، پارول، کیشکارل، ښکارل.

**توشی** (tawšáy) نر.م. (ج. توشي) ۱) لرګین ښانک، پینه، پینکی؛ ۲) هغه میوه چې زوم يې د خپلې ناوې له کوره له ځانه سره راوړي.

**توشیح** (tawšíh) ښځ.م. ۱) ښکلونه، جوړونه، آراسته کونه؛ ۲) کومه لیکنه په خپل مهر او لاسلیک سره ښکلونه؛ ۳) تړل؛ ٤) بد. شاعر خپل شعر داسې جوړوي چې د شعر د مسريو یا بیتونو د لومړیو توريو په يو ځای کولو کوم نوم، مسری یا کومه جمله لاس ته راشي؛ ٥) حق. د یوه هیواد د مشر په وسیله د هغه قانون لاسلیک چې مقننې غونډې تصویب کړی وي.

**توښ**(۱) (toṣ) ص. نر.م. متوجه، څیر، پام لرونکی، څک، په څو.

**توښ**(۲) (tawṣ-tawaṣ) نر.م. تاو، بړاس، تپ، بخار، توښم، توخم.

**توښه** (toṣá) ښځ.م. (ج. توښې) زهرمه، د لارې خرڅ، څوری، سفر خرڅ، جیب خرڅ.

**توښی** (tawṣáy) ښځ.م. د هوالي تودنی (بخاری).

**توصل** (tawaṣól) نر.م. یو ځای کېدنه، رسېدنه، … کېدنه، جوختېدنه.

**توصیف** (tawsíf) نر.م. صفت کونه، ستاینه.

**توصیه** (tawsiyá) ښځ.م (ج. توصیې) سپارښت، نصیحت، پند، لارښودنه.

**توضیح** (tawzíh) ښځ.م. واضح کونه، څرګندونه، ښکاره کونه، شرح کونه، شرح، بیان.

**توطیه** (tawtiá) ښځ.م. دسیسه، چل، چاته د ضرر رسولو لپاره پلان جوړونه.

**توغ** (toǧ) نر.م. ۱) بیرغ، جنده، نښان، رپی؛ ۲) هغه مهلستیا چې د ربیمګري يې د دوو کسو د پخلا کېدو لپاره کوي؛ ۳) تویغ، مرسته.

**توغل** (toǧál) نر.م. جړی، زول، پرلنه پسې باران او واوره.

**توغم** (toǧám) نر.م. زین پوښ، خوله وچ (عرقګیر)، ارغګیر، تر زین لاندې لمڅی.

**توغمه** (tuǧmá) ښځ.م. قهر، خوشکه، غضب.

**توغمه ناک** (tuǧmanák) ص. نر.م. قهرجن، غوسه ناک، پرغزناک، قارجن.

**توغندی** (tūǧandáy) نر.م. راکټ.

**توغول** (tūǧawál) مص. مت. ۱) يو شی په پټه وړل؛ ۲) څه شی پر ځمکه باندې په زور سره غورځول؛ ۳) غورځول، شړل، ویشتل.

**توغه** (toǧá) نر.م. تاغو، تاغه، تاخ، يو ډول ونه چې لرګي يې کلک او دانه يې خوږه ده.

**توغه** (toǧá) ښځ.م. ۱) کفاره، بدله، عوض؛ ۲) يو ډول ونه ده چې توره یا زیړه میوه لري.

**توغېدل** (tuǧedál) مص.ل. ۱) يو شی په غلا يوړ ددې ته کېدل؛ ۲) په غلا تلل.

**توفیق** (tawfíq) نر.م ۱) توان، طاقت؛ ۲) هدایت، لارښودنه؛ ۳) بریالیتوب، موفقیت.

**توقع** (tawaqó') ښځ.م. ۱) تمه، امید، هیله، غوښتنه، آرزو؛ ۲) باور، اعتماد.

**توقف** (tawaqóf) نر.م. ۱) ایسارېدنه، تالېدنه، ځنډېدنه؛ ۲) صبر، معطلي، ډيل، وقفه.

**توقيع** (tawqíʿ) ص.نر.م. ۱) پر کوم شه نبهان ايښودنه، د فرمان يا کوم ليک لاسليکونه؛ ۲) د پاچا لاسليک، فرمان او طغرى؛ ۳) خ. ثلث ليک ته ورته ليک دى.

**توقيف** (tawqíf) نر.م ۱) ستنونه، درونه، تالونه؛ ۲) بندي کونه، کېښنونه، ضبطونه.

**توک**[1] (tok) نر.م. ۱) نسل، نژاد، د توکم مخفف شکل؛ ۲) دول، قسم، توگ، شى څيز.

**توک**[2] (tuk) نر.م. لاړې، توکاني، وېژگي.

**توکارل** (tokārə́l) مص.مت. سپي تو تو کول، سپي رابلل، سپي را کوچول.

**توکانى** (tukānáy) ښځ.م. ۱) توکني، توکداني، تف داني ۲) د کوچنيانو يو ډول لوبه ده.

**توکانى** (tukā́nay) نر.م. خراشکى، گلوربى، خرپ، ارخشى، خراچکى.

**توکرکى** (tukárkay) نر.م. تکرکى، توکرى، کودرى، تيکرى، د خاورين لوښي توته.

**توکل**[1] (tawakól) نر.م. ۱) په خداى(ج) تکيه، د خداى په هيله کېدل؛ ۲) نيت، اراده، پيل.

**توکل**[2] (tokál) نر.م. دارن او کمزوري سپي.

**توکل**[3] (tūkál) مص. مت. لاړې توکول.

**توکلي** (tawakulí) ص. نب. ۱) په ځان اعتباري، داده؛ ۲) هوډيالى، د ارادې خاوند؛ ۳) په خداى(ج) باور او تکيه لرونکى؛ ٤) تصادفي، اتفاقي.

**توکلى** (tukə́lay) مف.نر.م. دخولې لاړې توکرې.

**توکم** (tūkám) نر.م. (ج. توکمونه) نسل، نژاد، تبر، قوم، پښه.

**توکميز** (tūkamíz) نر.م.ج. دتوکم اروند، نژادي.

**توکنى** (tukanáy) ښځ.م. وگ. توکانى.

**توکني** (tukaní) ص. نر.م.ج. بيهوده، فضول، چټي، عبث.

**توکول** (tukawə́l) مص. مت. لاړې توکل.

**توکونى** (tukawū́nay) نر.م. تکى، تيکلا، تيکلى، څکى، کلچه، تيکلى.

**توکه**[1] (toká) ښځ.م. ۱) توقه، شپېتى، د جوارو بې دانو وږى؛ ۲) قسم، توگه، ډول، توکي، توگ.

**توکه**[2] (túka) ښځ.م. ۱) گټه، فايده؛ ۲) دتوکولو د مطلق امر صيغه.

**توکى** (tókay) نر.م ۱) قسم، ډول؛ ۲) برخه، ونډه.

**توکي توکي** (tokí-tokí) ص.نر.ج. ۱) ارازراز، ډول ډول؛ ۲) برخي برخي، ونډې ونډې.

**توکېدل** (tukedə́l) مص.ل. لاړې توکېدل.

**توکيز** (tokíz) ص. د توک (توکي) يا مادي اروند.

**توکيزوال** (tokizwā́l) ص. ماده پال، ماده پرست، ماترياليست.

**توکيزواله** (tokizwā́la) ا. ماده پالنه، ماده گرايي، ماترياليزم.

**توگه** (tóga) ښځ.م. (ج. توگې) ۱) ډول، ذريعه، وسيله؛ ۲) قاعده، اصول، طرز.

**توگى** (tógay) نر.م. (ج. توگي) ۱) جنه، کتار، صف؛ ۲) خرگى، کوتى، دخرې بچى.

**تول**[1] (tol) ص.نر.م ۱) انډول سيال، مخې، سارى، کفو؛ ۲) نر.م. وزن، تلنه.

**تول**[2] (tūl) نر.م ۱) فصل، کروندە، کرنه؛ ۲) پټى، د کرښکه؛ ۳) بن، باغ؛ ٤) پالېز؛ ٥) انبل، د مرغيو منظم تگ؛ ٦) يو ډول توکر.

**تولان** (tulā́n) نر.م. ۱) تولاند، د زړکې تگ؛ ۲) په لاره تلل، په شکير تلل، تبل، ...

**تولايي** (tulāyí) ښځ.م. نالي، نهالي، توشک.

**تولباره** (tulbāŕa) ا. مالي تولار (تېکس)، اېرتولار، مالیه پرمایه.

**تولپک** (tolpák) نر.م. وسو، جمپا، تـورېک، جمامه، د شړشم په ځېر يو نبات دی.

**تولپېر** (tulpér) (گر.) اضافي حالت.

**تولترنگ** (tultaṛáng) (گر.) اضـافي (لغوي يا نحوي) ترکيب.

**تولتک** (tolták) نـر.م. (ج. تولتکونه) برستنه، شپرک، برستن، کنزړ، تلتک.

**تول تول** (twáltwál) ص. نـر. م. ج. تونټې تونټې، توکړې توکړې، څيرې څيرې.

**تولد** (tawalód) نر.م. (ج. تولدونه) زېږېدنه، پیدا کېدنه، زوکړه، شونه.

**تولک** (tolák) نر.م. تروکی، ترووکی، يو ډول تروه خونده سابه دي.

**تولکه** (tuláka) ښځ.م. ۱) تولی، د ژيـړو شپېلی، شپېلی، ټوله، نی؛ ۲) هغه ښکاري مـرغه چې په لومړی کوريز کې يې نيمې ښکې توی شي.

**تولگر** (tolgár) فـا.نـر.م. ۱) تول کوونکی، وزن کوونکی، درواېي؛ ۲) نرخي، تولگرندی.

**تولگرندی** (tolgránday) ص. تولگر، نرخي، نياومن (قاضي)، حکم.

**تولمشر** (tolmaśə́r) ا. د تول (ماليې) مشر، مستوفي

**تولند** (tulánd) فـا.نر.م. ۱) تيل کـوونکی، تيل وهونکی، رغېدونکی؛ ۲) مايل، څور.

**تولنوم** (tulnúm) (گر.) مضاف نوم.

**تولنومځری** (tulnūmjə́ray) گر. ملکي ضمير، اضافي ضمير.

**تولنومی** (tulnúmay) گر. مضاف اليه.

**تولوال** (tulwā́l) شتمن، څښتن، د ملکيت خاوند.

**تولوالي** (tulwālí) ا. څښتنوالی، دارايي شتمني.

**تولول**(۱) (tulawə́l) مص.مت. ۱) څرخ ورکـول؛ ۲) رغړول، تيلول، گرېي کول، کولول.

**تولول**(۲) (tolawə́l) مص.مت. تول کول، وزن کول، تلل، پيودل.

**تولونج** (tulwáñj) ا. تول‌بدلون، د وزن‌بدلون (په شعرکي).

**توله** (tolá) ښځ.م. ۱) تول، د ولس ماشې، د يوه وزن نوم؛ ۲) موازنه، انډولتوب.

**تولی**(۱) (toláy) ښځ.م. ۱) کنډه، د وربښمو يا زرو تللو کوچنی تله؛ ۲) د شولو بېخ.

**تولی**(۲)* (tūláy) ښـځ.م. ۱) دودکښ، د تاوخـانې دودکښ؛ ۲) پوچ شـوی کارتوس؛ ۳) يـو ډول وانښه؛ ٤) وگ. تولکه؛ ٥) پياله.

**تولی** (tūláy) نر.م. ۱) دورمه، کـړکی، دروی، نی؛ ۲) ځواني، قد او قامت؛ ۳) د توپک دروی.

**توليد** (tawlī́d) نر.م. (ج. توليدات) منځ ته راورنه، پيدا کونه، زېږونه، حاصلونه.

**تولېدل**(۱) (tūledə́l) مـص. ل. ۱) څـرخـېدل؛ ۲) رغړېدل، لغړېدل، گرېدل، کولېدل.

**تولېدل**(۲) (toledə́l) مص.ل وزن کېدل، تلل کېدل.

**توليدول** (tawlidawə́l) مص. مت. منځ ته راوړل، پيدا کول، زېږول، حاصلول.

**توليدي** (tawlīdí) ص. نـب. ۱) د زوکـړې؛ ۲) د توليد، د منځ ته راوړو، د حاصل.

**توليه** (tawlya) ښـځ.م. مخپاک، ځانپاک.

**تومار** (tumā́r) نر.م. ۱) خاربښت، تخور، تخمار؛ ۲) طومار، کوری، پرېړه او اوږده لبکـنه چې د کتاب او يا صحيفې په ډول وي.

**توماندار** (tumāndā́r) نـر.م. د بلوڅو د قبيلـوي مشر لقب دی.

**تومبار** (tumbā́r) نر.م. پارونه، لمسونه.

**تومبسکه** (tumbáska) ښځ.م. اوچته خمکه، لوړه ځمکه، ډومبسکه.

**تومبل** (tombə́l) مص. مت. مالوچ په دانډس وهل، مالوچ دانډس کول، تومبیا کول.

**تومبۍ** (tombə́y) ښځ.م. اوکرانۍ، اخور، پاخور.

**تومبیا** (tombyā́) ښځ.م. پاک شوي مالوچ، دانډس شوي مالوچ.

**تومت** (tomát) نر.م. تور، تورلګونه، بدنامونه.

**تومري** (tumrī́) ښځ.م. مو. تمري، تومري، دون، دغزل، قوالي او خیال په څېر یو طرز دي.

**تومله** (tómla) ښځ.م. تونه، تومنه، تبمنه، موره، دمستو جوړولو تومنه.

**تومن** (tumán) نر.م. ۱) تومن، ترم؛ ۲) داشخار بوټی؛ ۳) تومان، د شلو روپو سکه؛ ٤) تولی، ګوند، عـزیزولي؛ ٥) قبیله، تپـه، طـایفه، ډېری، مېنه؛ ٦) دکروندي تخم، دکرغله.

**تومڼ** (tomáṇ) ص. نر.م. ج. ترم، شیرګرم، تومن.

**تومڼی** (tomáṇay) ص. نر.م. و ګ: تومن؛ لږغوندي تود، شیرګرم، تومڼ.

**تومه** (tomá) ښځ.م. ۱) دیـوه شي تـل؛ ۲) مـایه، تومنه؛ ۳) د ښکاري مرغانو خـواره؛ ٤) غوړه مرۍ، غوړه ګپه.

**تومېدل** (tomedә́l) مص. ل ۱) تخرېد، توخرېدل، په خارښت راتلل؛ ۲) تومنه کېدل، خمیره کېدل.

**تون**[1] (tūn) نر م. ۱) مکاني ورورستاړي؛ ۲) وطن، مېنه، د اوسېدو ځای؛ ۳) یو ه غرنی ونه.

**تون**[2] (twan) نر.م. کوډی، کوډله، جونګړه.

**تون**[3] (ton) نر.م. و ګ: تون.

**تونبرۍ** (tonbṛáy) ښځ.م. هغه کډو چې پاړوګـر بین ورڅخه جوړوي.

**تونبیا** (tonbyā́) ښځ.م. ۱) سپنسی، د پنبې تار، پنبې تار؛ ۲) د مالوچو پاکونه.

**تونپېر** (tunpér) ګر. مکاني حالت.

**توند** (tund) ص. نر.م.ج. ۱) تېز، چټک، چالاک؛ ۲) مرچ لرونکی خواره.

**توندلاری** (tondlā́ray) ص. د توند او سخت دریغ خاوند، سخت دریغی.

**تونده** (tundá) ښځ.م. ۱) د وچې ضد، لمده مړی، لنده دوډی، غوړه مړی؛ ۲) دښمني.

**تونس** (tawns) نر.م. غوسه، خوشکه، قهر، کاو، غضب.

**تونګ**[1] (tong) نـر.م. ۱) ګـډوډ، تیت ورک؛ ۲) دغلې ګدام؛ ۳) خاورینه کوزه یا صراحي.

**تونګ**[2] (tawáng) نر.م ۱) پیټار، د ښځو د ګالیو ساتلو توکـری؛ ۲) د تناره د دوډۍ اېښوولو تخته.

**تونګه** (tónga) ښځ.م. پیغله نجلۍ، ځوانه جنۍ.

**تونګی** (tongáy) نـر.م. (ج. تونګي) ۱) الماري یا کـرکي څخه جوړه شوي وړوکی صندوقچه؛ ۲) جیلغ، څبلانګي.

**تونل** (tunā́l) نـر.م. په غـره او یا ترځمکې لاندې ایستل شوې سوری لاري.

**تونی** (tunī́) (ګر.) مکاني.

**تونه**[1] (tuṇá) ښځ. م. (ج. تونې) څېره، بڼه، قد، قیافه، قواره، موشاده.

**تونه**[2] (táwṇa) ښځ.م. توپ بازي، ګېن بازي.

**تونی** (tawṇáy) ښځ.م. ۱) الماری ته ورته لوی صندوق؛ ۲) غرفه، د غرفې دوکان.

**توول** (towā́l) مص. مت. و ګ: تویول.

**تووِلی** (towā́lay) مف. نر.م. توی کړی، تل کړی بیولی، تویولی.

توه⁽¹⁾ (towá) ښځ.م. ګاره، ګروګې، په لوښي کې د شیدو او پېروي لاندې پاتې شوې برخه، جوغې، جرغړې، ورغل.

توه⁽²⁾ (táwa) ښځ.م. د څمکې کچه پوله یا برید.

توه⁽³⁾ (twa) ښځ.م ۱) شاتوت، د توت ونه؛ ۲) خوند.

توهر (tohár) نر.م. د زقوم بوټی.

توه کې (tawakáy) ښځ.م. توده تیږه، تود کاڼی، د ماشومانو یوه لوبه ده.

توهم (tawahóm) نر.م. ۱) وسواس، اندېښنه، وهم، واهمه؛ ۲) ګومان، شک.

توهین (tawhín) نر.م. سپکاوی، بې حرمتي، بې عزتي.

توی⁽¹⁾ (táway) نر.م. د وزورمه، د بزو کندک.

توی⁽²⁾ (toy) نر.م. ۱) تې، سېلاب، نهر؛ ۲) خوږ، شېله؛ ۳) توی شوی؛ ٤) عبث؛ ٥) واده، ورا.

تو ی (tawáy) ښځ.م. ۱) تبې؛ ۲) وروکې کرایې.

تویالکه (toyālká) ښځ.م. (ج. تویالکې) دېګ، دېګی، دېکچې.

تویاند (toyánd) ص. تویوونکی، تویګر، ریخته ګر، ویلې فلز په کالب کې اچوونکی.

تویانه (toyāná) ا. تریبنت، ریخته ګري.

تویند (toyánd) ص. نـر.م. تویېدونکی، رژنـد، رژېدونکی، تلېدونکی، د وریېدونکی.

تویول (toyawə́l) مص.مت. ۱) تـودول، تلـول؛ ۲) ضایع کول، عبث کول.

تویېدل (toyedə́l) مـص.ل. ۱) تلـېدل، بیېدل؛ ۲) ضایع کېدل؛ ۳) رژېدل، دورېدل.

ته (tə) ض. ۱) د مفرد مخاطب ضمیردی؛ ۲) اد. مف. پورې، ترپورې، د ظـرف وییکی؛ ۳) ورته، داسې ادات چې استقـامت، لـورې او ارتباط ښیي او د بالواسطه مفعول سره راځي.

تهاجم (tahājúm) نر.م. (ج. تهاجمونه) یو پر بل حمله کول؛ یو پر بل یرغل.

تهال (tahā́l) نر.م. تال، لویه تالي یا ښانک.

تهان (thān) نر.م. ۱) تان، د توکر توپ؛ ۲) اشپول، اضپل.

تهجد (tahajód) نر.م. د شپې په منځ او پای کې عبادت کول.

تهخانه (tahxānā́) ښځ.م. زېرخانه، زېرزمیني.

تهداب (tahdā́b) نر.م. بنسټ، تاداو، اساس.

تهدید (tahdíd) نر.م. وېـرونه، دارونه، پتکه.

تهذیب (tahzíb) نـر.م. ۱) پاکـول، خالصـونه؛ ۲) ښـه سلوک؛ ۳) لیاقت، قابلیت، ورتیا.

تهذیبي (tahzibí) ص. نب. د تهذیب، کلتوري، اخلاقي، د مورال، په تهذیب مربوط.

تهلکه (tahluká) ښځ.م. هلاکېدنه، بربادي.

تهمت (tohmát) نر.م. تومت، تور، داغ، الزام.

تهمتي (tohmatí) ص. نب. د تـومت؛ تومتـي، تورن، بدنام.

تهن (tahán) ص. نر.م. زور، غوج.

تهنه (tahaná) ښځ.م. ژوروالی، غوچوالی.

تهه (tha) ښځ.م. له، تا، یې ک په یې ک، قت په قت، کت په کت، لا، د توکر سوز، د توکر بر.

تهېدل (tahedə́l) مـص. ل. ریـبـدل، ریـږدېدل، دګېدل، لړزېدل، ترېدل.

تهیله (tahilā́) ښځ.م. تېلې، کڅوره، خلته، تیله، لویه بوجګی، بوخښکی.

تهیه (tahyá) ښځ.م. تیارونه، برابرونه، چمتوکونه.

تی (tay) نـر.م. ۱) د تي لرونکو حیواناتو هغه غړی چې شیدې په کې تولېږي؛ ۲) و ګ. تا.

تې (te) ښځ.م. ۱) د «ت» توري تلفظ؛ ۲) اد. تـرې، ښځه، دونـه، ورځنـي؛ ۳) د «ته» ضمیـر او

«یې» مخفف شکل: تې وینې؛ ٤) خور، لګه.

**تیا** (tyā) ور. د پښتو ژبې یوه وروستاړی چې له صفتونو څخه اسمونه پرې جوړیږي.

**تیاتر** (tyātár) نر.م. تې آتر، تهتر، د تماشې ځای، ننداریځ، ننداره، د تماشا دښودلو ځای.

**تیاترال** (tyātrál) ص. نر.م. په تیاتر او نمایش اړوند، د تیاتر، ساختګي.

**تیار** (tayár) ص. نر.م. ۱) آماده، مستعد، چمتو؛ ۲، مکمل، جوړ؛ ۳) تکړه، څوربې؛ ٤) پوخ، بالغ؛ ٥) سنبال، سم، ځان جوړ کړی.

**تیارخور** (tayārxór) ص. نر.م(ج. تیارخواره) مفت خور، طفیلی.

**تیارسئ** (tyārsáy) امر. تیار اوسئ. آماده اوسی. عسکري بولی، اماده باش.

**تیارول** (tayārawál) مص. مت. ۱) آماده کول، چمتو کول؛ ۲) جوړول، پخول؛ ۳) غښتول، څربول ٤) سنبالول.

**تیاره** (tyārá) ښځ.م. تاریکي، تورتم.

**تیاره خپلواک** (tyāraxpəlwák) ګر. وروستی خپلواک(واول)، پایخپلواک.

**تیاری** (tayāráy) نر.م. ۱) چمتووالی، آماده کېدنه، تیارېدنه؛ ۲) درستوالی، ترتیب؛ ۳) غښتوالی، څربېدنه؛ ٤) سنبالېدنه، دول، سینګارونه.

**تیارېدل** (tayāredál) مص. ل. ۱) آماده کېدل، د کار په کولو راضي کېدل؛ ۲) پخېدل، جوړېدل ۳) غښتېدل، څربېدل؛ ٤) سنبالېدل.

**تیاسنتریزم** (tyāsantrizám) نر.م. له خدای(ج) سره مینه، خدای ته توجه.

**تیاسوفي** (tyāsufí) ښځ.م. عرفان، خدای پېژندنه، الهي حکمت، اشراق، تصوف.

**تیالکه** (tayālká) ښځ.م. (ج. تیالکې) د خاورو کتو (کتوی، کتوه).

**تیالوجي** (tyālojí) ښځ.م. خدای(ج) پېژندنه، دینیات، الهیات، الهي حکمت.

**تېبون** (tebún) نر.م. ۱) وګ. تیمم؛ ۲) عزم کول.

**تیپ** (tip) نر.م. (ج. تیپونه) ۱) تولی، د پوځ قطار؛ ۲) تیپ، نمونه، ډول.

**تېپچه** (tepčá) ښځ.م. کرکری، نمنګی، کیرکیری، هغه آله چې له هغې څخه د ښخینه سېزې اواز ایستل کېږي.

**تیت** (tit) ص. نر.م. ج. خپور، ګډوډ، خوروور، تیت پرک، شیندل شوی، پرېشانه.

**تیتاله** (titála) ص. نر.م. ج. په ختیځې کلاسیکې موسیقۍ کې د یوه تال نوم دی.

**تیتر** (titár) نر.م. د زرکې په اندازه یو خړ رنګی یا توربرګ جنګي مرغه دی.

**تیترا** (titrá) عد. نر.م. وګ. تترا.

**تیترۍ** (titráy) ښځ.م ۱) خرېړی، خومبه، دورنګ ګرځي؛ ۲) دخرېړیو اچار.

**تیتوالی** (titwálay) نر.م. ګډوډوالی، خوروور والی، تیت و پرک والی.

**تیتول** (titawál) مص. مت. نوستل، شندل، خورول، ګډوډ کول، شیندل.

**تي تي** (titi) نر.م. ۱) بیو بیو، د چرګو او چرګوړو رابللو اواز؛ ۲) کوچنیانو چرګوړي ته وایي.

**تیتېدل** (titedál) مص. مت. ګډوډ کېدل، خوروور کېدل، کرې پرې کېدل، خورېدل.

**تېخاند** (tecánd) ا. تېخونکی، تېخه ګر، برمه کار.

**تېخل** (tecál) مص. مت. برمه کول، په برمه سوری کول.

تېڅی (tecáy) ښځ.م. ښوشنی، برغـو، گرمټ، برمه، د سوري کولو آله.

تېغ(٢) (teǧ) نر.م. زغل، مغاسعه، منډه.

تېغل (teǧál) مص. مت. مغلول، په مغاسته کول.

تېخواره (tixwārá) مر.ښځه کوچنیان چې د یوې مور شودې یې رودلې وي برضاعي وروڼه، رضـاعي خوېندې)

تېخور (tixór) نر.م. ١) خاربښت، تخمور؛ ٢) ص. نر.م. دتي رودونکی ماشوم.

تېخورتون (tixortū́n) ا. د تېخـورو کـوچنیـانو پنډغالی، روتون.

تېخورول (tixorawə́l) مص. مت. خـاربښتول، تخنول، تخنول، تخرول.

تېخوری (tixóray) ص.نر.م. ١) تي پورې ماشوم د تي ماشوم؛ ٢) خاربښتي، تخنهدونکی.

تېخوربـدل (tixoredə́l) مص. ل. خـاربښـتېدل، تخنېدل، تخنهدل، تخرېدل.

تېر (ter) ص.نـر.م. ١) پخواني، مخکنی؛ ٢) لار، اوربدلی؛ ٣) نر.م. دوکه، تېگي.

تیر (tir) نر.م. (ج. تیـران) ١) ویشه، بش، شاتیر؛ ٢) لاری، دستک؛ ٣) غشی، ناوک؛ ٤) دغره هغه تېره څوکه چې ونې ونه لري.

تېران (terán) نر.م. جایز، روا.

تېرایستل (teriistə́l) مص. مت. غولول، دوکه کول، تګل، تېرېستل.

تیربلی (tirbaláy) ښـځ.م. وزر، نینـګاوو، هـغه لرګی چې دکور له چت څخه بلې ته راوتلی وي.

تېربوری (terburáy) نر.م. چارمغز، متک.

تېربوزی (terbūzáy) نر.م. پـاره، یو ډول ګندل (ګندون) دي.

تېربه (terába) ښځ.م. ...

تېربېر (terbér) ص.نر.م. ج. ١) وړاندې وروسته، تېروېېر؛ ٢) چل ول.

تېرسولی (tersūláy) نر.م. جوټه، پاته شوی خواړه، پس خورده، پاته شونی.

تېرغمال (teraǧmā́l) ص. نر.م. ظالم، ظالم کار، تېری کوونکی.

تېرغمل (teraǧmál) نر.م. ظلم، زور، تېرغمی.

تېرغملانه (teraǧamalā́na) ا. و.ګ. تېرغمل.

تیرک (tirák) نـر.م. د اوسپنې هغه سیخ چې د ژرندې د څـرخ له پاسنۍ برخې سره وصـل او د لاندینۍ پله له سوري څخه پاس وتلی وي.

تیرکښ (tirkáṣ) نـر.م. ١) دکشمشـو د ساتلـو د کوټې سوری؛ ٢) د مورچې سوری.

تېرکی (terkáy) ښځ.م. ښنګل، ښنګله.

تېرګه (tergá) ښځ.م. ١) تجیر، هغه دېوال چې په کور کې د یوې برخې د جلاکـولـو لـپاره پورته شوی وي؛ ٢) هغه تسمه چې روستاری وړباندې ترل کېږي.

تیرلک (tirlák) نـر.م. ١) برچکی، تیـزکی، یو کوچنی لرګی دی چې په تلکه باندې راوړي او په هغه کې غوښه یا د وړی خسوزي پړدي.

تېرمتی (termatáy) نر.م. تتو، یابو، زوړ آس.

تېرمهال (termahā́l) (ګر.) تېره زمانه، تاریخ.

تېرمهال کړ (termahālkáṛ) ګر. ماضي فعل.

تېرمـهالي (termahālī́) (ګـر.) د تـېرمـهال (ماضي) اړوند، تاریخي.

تېرناپای (ternāpā́y) (ګر.) د تېرمهال مصدر.

تېرندود (terandód) نر.م. عسکري رسم ګنشت، عسکري پرېټ (پرېډ).

تېرنه (terána) ښځ.م. ١) معافي، عفوه، تېرېدنه، بخښنه؛ ٢) ظلم، زیاتی، جبر.

تېرو (terū́) ص. نر.م. ظالم، زياتی کوونکی.

تېرواته (terwā́ta) نر.ج. تېروتنه، خطا کېدنه، غولېدنه، دوکه خورنه.

تېروار (terwā́r) ق. تېرغل، تېروخت، تېرنوبت.

تېروتل (terwatə́l) مص. ل. غولېدل، دوکه کېدل.

تېروتنه (terwatə́na) ا. بنويېدنه، ختا وتنه، غلطي، اشتباه.

تېروتی (terwā́tay) ص. نر.م. دوکه شوی، خطا وتی، غولېدلی، تېرايستل شوی.

تېروری (terwaráy) نر.م. سپک بار، سپک وری، هغه سامان چې له کوچېدو مخکې کوم شای ته لېږدول کېږي.

تېرول (terawə́l) مص. مت. ۱) زغمل، پېغل؛ ۲) خوړل، نغرل؛ ۳) بلاربول؛ ٤) وخت اړول، ٥) تېره کول؛ ٦) زور سبق استاد ته لوستل؛ ۷) اړول، پورې ايستل؛ ۸) بخښل.

تېرون ونډه (terunwanda) ا. د تېرېدو حق، حق العبور.

تېرونی (terū́nay) ص. نر.م. عزيز، ګران، زړه ته نيږدې، خپل، خپلوان.

تېرويستنه (terwestə́na) ښځ.م. غولونه، تګنه.

تېره (térа) ص.نر.م. ۱) تېز (چاکو، تبره، چاړه...) ۲) زورور، تکړه؛ ۳) چالاک؛ ٤) پوه، هوښيار؛ ٥) ص. ښځ.م. پخوانی، مخکينی؛ ۲) بلاربه؛ ۳) تلې، تللې، لاړه شوې.

تېره توب (teratób) نر.م. ۱) تېزوالی، تېره والی؛ ۲) چالاکي؛ ۳) تکړه توب، تکړه والی؛ ٤) هوښيار توب، هوښيار والی.

تېره شپه (terašpá) ښځ.م. بېګانۍ شپه.

تېری (teráy) ښځ.م. د يېندې د لوبې د منډې په وخت کې يو او بل طرف ته پېرونه خوړل.

تېری (teráy) نر.م (ج. تېري) ظلم، زياتی، تجاوز.

تېري (teré) ښځ.ج. تياري، تورتم.

تېرېدل (teredə́l) مص. ل. ۱) تلل، خوړېدل، ۲) شاړېدل؛ ۳) حامله کېدل؛ ٤) زغمل کېدل، ٥) نغرل کېدل؛ ٦) مړ کېدل؛ ۷) ګذشت کول.

تېرېزه (terezá) ښځ.م. ترېزه، يو ډول بوټی دی.

تېريستل (teristə́l) مص.مت. و ګ. تېرايستل.

تېری کوونکی (teraykawūnkay) فا. نر.م. زياتی کوونکی، ظلم کوونکی، متجاوز.

تېز (tez) ص. نر.م.ج. ۱) ونډی، چست، چابک؛ ۲) هوښيار، څيرک؛ ۳) تېره؛ ٤) ژور، عميق.

تيز (tiz) نر.م. ۱) تيز، ګوز؛ ۲) و ګ. تز.

تېزاب (tezā́b) نر.م. يو ډول تند او سخته مايع ده چې په بدن يا کاليو ولوېږي سوځي يې.

تيز بيز (tizbíz) نر.م. د بېډيو يو ډول لوبه ده.

تيز تيزکو (tiztizakó) ښځ.م. تيز تيزکي، ګونګوټي ته ورته يو ډول برګه خزنده ده چې په لاس ولګېږي نو له کوني نه يې تور لوګی وځي.

تېزذهنی (tezzéhnay) ص. تېزاندی، ژر پوهې.

تېزرفتار (tezraftā́r) ص. نر.م ۱) چاغ، چابک، ګرندی؛ ۲) نر.م. يو ډول کوچنی موټر دی.

تيزرګ (tízrag) نر.م. په پښه کې يو رګ دی چې په تينګ نيولو سره د پر خوږېږي.

تېزس (tezā́s) نر.م. (ج. تېزسونه) و ګ. تز.

تېزل (tezə́l) مص.مت. و ګ: تېخل.

تېزليدی (tezlíday) ص. تېز وينی.

تېزمزاج (tezmizā́j) فا. ص. نر.م. خوشکتې، غوسه ناک، قهرجن.

تيزن (tizán) ص. نرم. ۱) ترن، تخن؛ ۲) اولن.

تېزندی (tezandáy) ص. نر.م. د زندۍ پېرۍ عرغړې پېرۍ.

تېزوالی (tezwā́lay) نر.م ۱) چټکتیا، چابکي، ګړندیتوب؛ ۲) چالاکي، هوښیاري، پوهوالی؛ ۳) تېره توب، تېزتوب.

تېزول (tezawә́l) مص. مت. ۱) چاخول، چټک کول؛ ۲) چالاکه کول، پوه کول؛ ۳) تېره کول.

تېزه (téza) ص. ښځ.م. تېزه ګی، په روانی سبق ویل.

تېزي (tezí) ښځ.م. سورلي، سپرلي.

تېزېدل (tezedә́l) مص.ل. ۱) چستېدل، چټک کېدل؛ ۲) هوښیارېدل؛ ۳) تېره کېدل.

تیږکه (tizáka) ښځ.م دلرګي یوه پلنه او اواره دېلۍ.

تیږه (tíza) ښځ.م. ۱) کاڼی، ډبره، ګټه؛ ۲) پ. ک. قومي بندیز، یو راز مستارکه ده چې د قبیلې د دښمنو ارخونو ترمنځ کېږي.

تېسه (tésa) ښځ.م. ۱) سپما، په خرڅ کې تنګي؛ ۲) ګټه؛ ۳) زیاتوالی؛ ٤) تګي.

تېښ (teš́) نر.م. تسپار، سسپار، دسپارې څوکه، د کرکې څوکه، د پال یا پالې څوکه.

تېښ خولی (tešxwálay) ص. نر.م. اوچته غوندي خولی، جګه خولی.

تېښن (tešә́n) ص. نر.م. تېښن، چېښن، سېښن، ببر، هغه څوک چې لوی لوي وېښتان لري.

تېښه (tešá) ښځ.م. تربېغ، ترخغ، تېښغ.

تېښت (tešt) نر.م. تېښته، شغل، منډه، ښغاسته.

تېغ (teğ) نر.م. (ج. تېغونه) ۱) توره، خنجر، چاړه؛ ۲) توغی، تېغی، تازه توکېدلی بوټی.

تېغنه (tégna) ښځ.م. (ج. تېغنې) ۱) تېغ، توغی، تازه توکېدلی؛ ۲) تېغی، تېبی؛ ۳) ټیکلی، ککوری، د ګرافون ریکاټ.

تېغون (tegū́n) ص. نر.م. ۱) روڼ، ځلېدونکی، ځلېدونکی؛ ۲) یو دول باز.

تېغه (téğa) ښځ.م. ۱) تېغ، غوڅوونکی آله؛ ۲) دغره څوکه، تېغ سر؛ ۳) سنج، د بام سنج.

تېک (tek) ص. نر.م. ۱) تېغ، اوچت؛ ۲) څرګند، ښکاره، جوت؛ ۳) سپین سترګی، تېغ بېغ.

تیکړک (tikrák) نر.م. یو ډول زانی دی چې پښې یې بهېخي توري او اوږدې وي.

تېکه (téka) ښځ.م (ج. تېکی) ۱) ځنګړن، راخوړند؛ ۲) تېکی، د توري نیام، غلاف؛ ۳) ص. نب. تېک، په غرور کې.

تېکی (tékay) نر.م (ج. تېکي) چړتون، غلاف، نیام، د چړې یا توري پوښ.

تېکیر (tekír) نر.م. ۱) په سر کې سپېړې یا ریچې لټونه؛ ۲) رخه کونه؛ ۳) تحقیق کونه، څېړنه.

تیګوغی (tigū́ğay) نر.م. یو ډول ډوډی ده.

تیګه (tíga) ښځ.م. ۱) تیګا، سالندی، سابندي، ساوهنه؛ ۲) زغم، تحمل.

تېل (tel) جن. ۱) غوړ، هغه غوړي چې له شړشمو، کونځلو او... څخه ایستل کېږي؛ ۲) نفت.

تېلپکه (telpáka) ښځ.م. (ج. تېلپکي) د پښتنو یو خاص ډول خولی دی.

تېل داني (teldānáy) ښځ.م. کوپی، هغه قوطي ته وایي چې تېل په کې وي، بوتلګی.

تي لرونکي (tilarū́nki) ص.نر.م. تیور، غولانځه لرونکي، پستاندار.

تېلو (teló) ښځ.م. غولانځ، هغه کڅوړه چې د لنګو مېږو غولانځو ته وراچوله کېږي.

تېل ورونکی (telwṛū́nkay) ص.نر.م. ټانک، ټانکر، د تېل وړلو نقلیه وسیله.

تیله (tilá) ښځ.م ۱) زرتار، ګلابتون؛ ۲) د زرتارو لړ، د زرتارو کوری، د ګلابتونو کړی.

تېلۍ (telә́y) ښځ.م ۱) کڅوړه، بوجۍ، ګونۍ، تېلی.

**تیله داره** (tiladā́ra) ص.ښځ.م. د تیلې، له تیلې نه جوړه، زري، د زرتارو، د گلابتوني.

**تیلی** (tiláy) نر.م. ۱) اورلگیت، تیلی، گـوگړ؛ ۲) د کاریـز ډنډ، ۲) چخچـی، پلته، خـاشـه؛ ۳) تریږی، تریلی.

**تېلی** (teláy) ښځ.م. همیانی، میانی، کځوره.

**تیلی** (tiláy) ښځ.م. ۱) چنډه، تـرازه، تیلم، قـاش؛ ۲) د گوگړ کانی؛ ۳) دلرگي نرۍ تېزه برخه.

**تیلي** (tilí) فا.نر.م. گـېنگر، د تېلو گانې لرونکی، د تېلو ابستونکی.

**تیم** (tim) نر.م. ۱) وگ. تیم؛ ۲) مو.تم، تکـراري قطعه، د موسیقۍ هغه قطعه یا میلوډي چې تکراریږي؛ ۳) موضوع، مطلب، مقاله.

**تیمبوزک** (timbūzák) نر.م. وگ. تربوزک.

**تیمبوزی** (timbūzáy) نـر.م. تینبوزی، ورسک ترنه، تمبوزی ترنه، تربوزک، مول.

**تیمچه** (timčá) ښځ.م. خرجین، مشکی، هغه کځوره چې له غالۍ نه جوړه وي.

**تیمم** (taymúm) نر.م. هغه عمل چې د ناروغۍ یا اوبو د نه پیدا کېدو پر مهال د اوداسه پر ځـای ترسره کېږي او عبادت پرې جایزېږي.

**تیمور** (timúr) نر.م. ۱) فولاد، پولاد.

**تینبوزک** (tinbuzák) نر.م. وگ. تربوزک.

**تینتیغی** (tintiğáy) نـر.م. شـین تـوپی، شین توپکه، چکی، یوه برگه غونډې مرغی ده.

**تین تېرک** (tinterák) نر.م. بمبیرک، ستنه.

**تین تېنه** (tintená) ښځ.م. یو ډول مرغی.

**تینداره** (tindā́ra) ښځ.م. وگ. تنداره.

**تیندک** (tindák) نر.م. وگ. تندک(۱).

**تیندکه** (tindáka) ښځ.م. تیندوبی، د اوبو داره، د اوبو پواره، فواره، د اوبو پُشکه.

**تیندلک** (tindalák) نـر.م. ۱) گړدی؛ ۲) ابکـر خور، دنگېدونکی، نوک وهونکی.

**تیندوړی** (tindóṛay) نـر.م. تینـدوری، د پـزې پېزوانک، د پزې کرپندوکی.

**تیندوڼی** (tindóṇay) نر.م. ۱) دغوږ کرپندوکی برخـه؛ ۲) د پزې هغـه برخـه چې ښـځې پکې پېزوان اچوي.

**تیندوی** (tindáway) نر.م. کرپندوکی، غضروف.

**تینکی** (tinkáy) نر.م. د دېگ کفگیر، چمچه.

**تېنگ** (teng) نر.م. تابوت، شخـره، د مـړي ورلو لرگین صندوق.

**تینگړی** (tingṛáy) ښځ.م. ۱) چتکی، گـوترک، د دوو گوتو ترک، ۲) کته پیش، موکی.

**تینگړی** (tingṛáy) نر.م. غاب، لوړکی، پرانېښ، ترینگلی.

**تېنگه** (tengá) ښځ.م. گوټي، میـرگاټي، واړه واړه کاني چې کوچنیان لوبې پرې کوي.

**تینگی** (tingáy) ښځ.م. ینگه، پـه یـو ســا لوبه چنبل.

**تیور** (taywár) ص.نـر.م. ۱) وگ. تي لـرونکی؛ ۲) غټ تي لرونکی.

**تیور** (tiwár) ص.نر.م.ج.مو. له هغو پنځو سُرونو څخه چې اشتراک مني، هر یو یې یو بېل سُرلري چې تیور ورته وایي.

**تیورا** (tewarā́) ص.نر.م.ج.مو. داوو ماترو څخه جوړ د یوه تال نوم دی.

**تیورژوی** (tiwaržáway) نر.م. غولانځـور ژدی، تي لرونکی ښناور.

**تیورم** (tyorám) نر.م. قضیه، مسئله، قاعده.

**تیورور** (tiwrór) ا. دتي ورور، رضاعي ورور.

**تیوري** (tyurí) ښځ.م. نظري اصـول، نظریه، ...

کلي اصول، علمي فرض یا فرضیه، نظري تحقیقات، علمي موضوع.

**تېوزه** (tewzá) ښځ.م. (ج. تېوزې) سمڅ، ګاره، سپون غاړی، چپوره.

**تیه** (tíya) ښځ.م. په ښځو او نورو لویو کې د بیا نویت اخیستو لپاره غیږ.

**تیېل** (teyə́l) مص. مت. په غوږو کې سره کول، په تېلو کې سره کول، سره کول.

**تیېلی** (teyə́lay) مف. نر.م. (ج. تیېلي) په غوږو یا تېلو کې سور کړی.

**تیېنکی** (teyə́nkay) نر.م. (ج. تېېنکي) د پزې تنکی هډوکی، د پزې کړپندوکی.

**تیېنه** (teyə́na) ښځ.م. په غوږو کې سره کونه.

**تیېنی** (teyə́nay) نر.م. (یو پور، پوره ګانې، چنې یا داسې بل شی چې په یوه وار وریت شي.

**تیېنې** (teyə́ne) ښځ.م. اینه لورمابن، لرمابن، پریوس، لرمون، یینه.

**تیېونکی** (teyū́nkay) فا. نر.م. په غوږو کې سور کوونکی، په تېلو کې سور کوونکی.

**تیي** (tayí) ښځ.م. دایي، قابله.

# ټ

**ټ** (ṭe) ښځ.م. (ټې) د پښتو الفبې شپږم توری دی.
**ټاب** (ṭā́b) نر.م. ټاپ، افسوس، ارمان.
**ټابلېټ** (ṭābléṭ) نر.م. Tab'let ګولی، قرص.
**ټابۍ** (ṭābáy) ښځ.م. هغه اوښه چې دوه کاله پس بچی زېږوي.
**ټاپ** (ṭā́p) نر.م ۱) ټاب، ارمان، افسوس؛ ۲) مُهر، نښان، ټاپه؛ ۳) سر، څوکه؛ ٥) تېزتګ؛ ٦) نامتوسري، وتلې څېره.
**ټاپ ټېپ** (ṭāpṭúp) نر.م. ۱) دارمدار؛ ۲) ډول، سینګار؛ ۳) کمزوري، بوډا، ټپ زور.
**ټاپل** (ṭāpál) مص. مت. ۱) ټاپه لګول، مُهر لګول، چاپول؛ ۲) څاروی خسي کول، ټپي کول.
**ټاپن** (ṭāpán) فا. نر.م. مُهر لګوونکی، ټاپه کوونکی، چاپه کوونکی، چاپګر.
**ټاپنځی** (ṭāpanǰay) نر.م. چاپخانه، چاپخونه، مطبعه، د چاپولو ځای، چاپځای.

**ټاپنه** (ṭāpána) ښځ.م. ۱) چاپونه، ټاپه لګونه؛ ۲) خسي کونه، ټکونه، ټپي کونه.
**ټاپو** (ṭāpū́) نر.م. ۱) جزیره؛ ۲) برج، ماڼۍ؛ ۳) راوتلی ځای.
**ټاپوړه** (ṭāporá) ښځ.م. (ج. ټاپوړې) ټاپونه، د کالیو مینځلو تخته.
**ټاپوړۍ** (ṭāporáy) ښځ.م. توکان، دتخرګ امسا، دترخ امسا، د تخرګ لکړه.
**ټاپول** (ṭāpwál) مص. مت. چاپول، ټاپه لګول، ټاپېول.
**ټاپووزمه** (ṭāpūwázma) ښځ.م. جزیره نما، د ټاپو په څېر؛ جغ. هغه وچه چې درې خواوو ته یې اوبه او یوې خوا ته یې وچه وي.
**ټاپه** (ṭāpá) ښځ.م. (ج. ټاپې) ۱) مُهر، نښانه؛ ۲) په جامه یا توکر باندې څه کښېښېده؛ ۳) تور، تهمت؛ ٤) رټه، لکه، داغ.

**تاپه رس** (ṭāparás) نر.م. نورپرست، کاپرګل.

**تاپی** (ṭāpay) نر.م. (ج. تاپي) ۱) دوستي، اشنايي؛ ۲) وخت، موده؛ ۳) پته مشوره؛ ٤) د ناروغتيا سخت وخت؛ ٥) پې، بيانه، (په تجارت کې) مخکې روپۍ؛ ٦) واتن، منزل؛ ۷) د پوړ نښته؛ ۸) جم جکړ، زول باران؛ ۹) تاپه لګوونکی.

**تاپی** (ṭāpáy) ښځ.م. ۱) د غنمو د درمند خاصه نښه، ۲) په خولۍ کې د ګلابتونو ګل.

**تاپي تاپي** (ṭāpiṭāpi) ص. نر.م. خال خال، خاپ خاپ، تکي تکي، داغ داغ.

**تاپېدل** (ṭāpedál) مص. ل. چاپېدل، چاپ کېدل، مهر کېدل، نښانه کېدل.

**تاټ** (ṭāṭ) نر.م. ۱) وياړ، فخر؛ ۲) لويي؛ ۳) کوږ، راتاو؛ ٤) سُندين توکر، ترپال؛ ٥) مو. د آهنګونو د راغونډېدو مرکز او د موسيقۍ د اشکالو (سري نمايش)..

**تاټ باټ** (ṭāṭbāṭ) ص. نر.م. تاټ پاټ، نخره، شان شوکت، ساټ باټ.

**تاټسي** (ṭāṭasí) ښځ.م. توکه، پرېرۍ، شېتۍ.

**تاټکه** (ṭāṭáka) ښځ.م. يو ډول بوټی دی چې ژاوله ئني جوړوي، مرخېړی، تاټوکه.

**تاټکی** (ṭāṭkáy) نر.م. اوسپنيز لوښی چې ودانيزه مساله پکې وړل کېږي.

**تاټوالی** (ṭāṭwālay) نر.م. کوږوالی، يو اړخ ته، ځنګرنتوب، ځنګزنوالی.

**تاټوب** (ṭatob) نر.م. ۱) ګذران؛ ۲) خاموشي، چوپتيا، آرامي.

**تاټوبه** (ṭāṭoba) ښځ.م. تاټوبی، د استوګنې ځای.

**تاټول** (ṭāṭawál) مص.مت. ۱) تاټ ورکول، کږول؛ ۲) ناز ورکول، وياړ ورکول.

**تاټه** (ṭāṭa) ص.نب. سم، برابر، نېغ، مستقيم.

**تاټی** (ṭāṭáy) ښځ.م. ۱) جوټي، للوللو - د کوچنيانو د ويده کولو لپاره يوه کليمه ده.

**تاټي** (ṭāṭi) ص.نب. د تاټ خاوند، فېشني، مغروره.

**تاټېدل** (ṭāṭedál) مص. ل. کږېدل، يوه لوري ته تيټېدل، يوه لور ته کږېدل، قاتېدل.

**تاخ** (ṭāx) نر.م. ۱) تاخت، شغاسته؛ ۲) د ټوپک د کارتوس د خلاصېدو غږ.

**تارپيډو** (ṭārpedó) ښځ.م. يو ډول وسله ده، اژدر.

**تارپيلور** (ṭārpilór) ص. نر.م. وړه ماکو ډوله جنګي بېړۍ ده.

**تاره** (ṭāra) ښځ.م. خېته، ګېډه، نس.

**تاری** (ṭāray) نر.م. ۱) تاري، سنګر، بالاخانه، برج؛ ۲) د نښتر ځانګه؛ ۳) د ښېرۍ ښاخ.

**تاري** (ṭāri) ښځ.م. ترېدونکې، غړېدونکې، چتي خبرې کوونکې، چتي بول.

**تاس** (ṭās) نر.م. ۱) ټس، د لوښي د چاودلو اواز؛ ۲) ټسه، لوی پټکی؛ ۳) اسک، شرط، پچه.

**تاغی** (ṭāğáy) ص. نر.م. بې سترګی، رډ سترګی، شېرا، چغر، چغر سترګی.

**تاق** (ṭāq) نر.م. ۱) ټک، تق، د ټوپک د خلاصېدو اواز؛ ۲) د کلک شي د ماتېدو اواز.

**تاک** (ṭāk) ص. نر.م. ۱) تریو، تروش، په ښښه شوی پسه؛ ۲) د يوې ونې د مېوې نوم دی.

**تاک تال** (ṭākṭāl) ص. نر.م. ۱) تکنی، ترهور، ترهېدلی؛ ۲) اندېښمن، وسواسي.

**تاک توک** (ṭākṭúk) نر.ج. ټک ټوک، ټک پک، د کور سامان او اثاثيه، لوښي لرګي..

**تاکر**[1] (ṭākár) ص. نر.م. عمر خوړلی، بوډا.

**تاکر**[2] (ṭākúr) نر.م. چنډوی، د کوچنيانو لوبه ده.

**تاکل** (ṭākál) مص.مت. ۱) مقررول، غوره کول؛ ۲) په نښه کول؛ ۳) ناراغخته کول ورکول.

**تاکلی** (ṭākálay) ل. نر.م. ۱) مقرر شوی، تعیین شوی، انتخاب شوی؛ ۲) په نښه شوی.

**تاکنده** (ṭākə́nda) ص. تاکونکی، غوځ، پرېکنده، (خبره یا دریغ).

**تاکنده غرمه** (ṭākandağárma) ص. ښځ.م. وګ. تکنده غرمه.

**تاکنه** (ṭākə́na) ښځ.م. (ج. تاکنې) غوره کونه، غوراوی، مقررونه، انتخابونه، تعیینونه.

**تاکو** (ṭākū́) نر.م. ۱) دغوا او مېښې یو ډول ناروغي ده؛ ۲) کینه ناک؛ ۳) ص. نب. تالا، چور.

**تاکور** (ṭākór) نر.م. ۱) وګ. تاکر[۲]؛ ۲) تکور، تبل، تب ورکول، تکور ورکول.

**تاکۍ** (ṭākə́y) ښځ.م. ۱) کاسې، پتاک، د چنوغزې پتان؛ ۲) لړوېښ دکه تناکه؛ ۳) ادویدو، ډېر مور انسان یا حیوان؛ ٤) نښه؛ ٥) ډېډا، د بوتل سرپوښ؛ ٦) داوسو بانګۍ؛ ۷) پیوند، پینه؛ ۸) پتاکۍ، دکارتوس د اور اخستلو ځای.

**تاکې** (ṭāké) ښځ.م. چک چکې، چکې، د لاسو پرکول، د لاسو تکول، تاړۍ.

**تاکی** (takay) نر.م. ۱) تیکه لګوونکی، خال وهونکی؛ ۲) ځاځکی، قطره.

**تال** (ṭāl) نر.م. ۱) پهنګه، زانګو، تال؛ ۲) ځنډ، تم، معطل؛ ۳) د غنې تار؛ ٤) د تلې دړ؛ ٥) تل، د لرګیو دلې، د لرګیو انبار.

**تالان** (ṭālā́n) نر.م. ټالنټ، ۱) د سپینو یا سرو زرو د پیسو یو مقدار؛ ۲) د یو وزن نوم.

**تال متال** (ṭālmatā́l) نر.م. تېل تال، ... باز چل و فریب، غولونه، چالاکي، چل ول.

**تال متالول** (ṭālmaṭālawə́l) مص. مت. ۱) ځنډ په تمه کول، چاته په یو کار کې پلمه کول؛ ۲) چل کول، غولول.

**تال متالېدل** (ṭālmaṭāledə́l) مص. ل. ۱) ځنډ په تمه کېدل، ځنډ په اسره کېدل، په چلبازو غولېدو کښېوتل.

**تالول** (ṭālawə́l) مص. مت. ۱) ځنډول، معطلول، تمول، تم کول؛ ۲) زنګول، جوته ورکول.

**تاله** (ṭālá) ښځ.م. (ج. تالې) یو ځایي خرڅونه، ساپټ، په عمده ډول خرڅول.

**تالۍ** (ṭālə́y) ښځ.م. شوه، یو ډول ونه ده چې بایسته او کلک لرګی لري.

**تالېدل** (ṭāledə́l) مص. ل. ۱) ځنډېدل، معطلېدل؛ ۲) زنګېدل، جوته کېدل.

**تامباري** (ṭāmbā́rí) ښځ.م. په چیغو چیغو ژړا، په کوکو کوکو ژړا، انګولا، کریغې، تاتاره.

**تامبوسی** (ṭāmbūsay) نر.م. ۱) توسان، ګنګرې، واورې غرې، د واورې ګریګرې.

**تامته** (ṭāmta) ښځ.م. تانته، تانډه، د جوارو یا باجرو هغه برخه چې وږي ترې ایسته شوي وي.

**تانتس** (ṭāntás) ص. نر.م. کم عقل، بې عقل، لنډ فکری، لنډ اندی، ناپوه، شوده، ساده.

**تانتوبی** (ṭāntobáy) نر.م. ګنه ګونه، غالمغال، غوربېر، غوربګ، غوربېر، غوربش.

**تانتور** (ṭāntór) نر.م. تانډور، د ښپیاکې توتې چې په نغری کې یو ډبل له پاسه اېښودل کېږي.

**تانچۍ** (ṭānčáy) ښځ.م. تانکۍ، د اوبو تانکۍ، هغه لوی لوښی چې اوبه یا تېل پکې ساتي.

**تاندور** (ṭāndór) نر.م. وګ. تانتور.

**تانک** (ṭānk) نر.م. ۱) شوبله؛ ۲) هغه لوی لوښی چې تېل یا او ... پکې لېږدي؛ ۳) د تېلو ... ؛ ٤) یو ډول درنه وسله ده.

**تانکه** (ṭānka) ښځ.م. ۱) ټک، ګنډ، بخیه، بنې؛ ۲) پیوند.

**ټانکی** (ṭānkáy) ښځ.م. وګ. ټانچی.

**ټانګ** (ṭāng) نر.م. ۱) اوازه، اوچت غږ؛ ۲) موسم، وخت؛ ۳) د وزیږد لنګېدو وخت؛ ٤) یوه غرنۍ مېوه ده؛ ٥) موسمي باران؛ ٦) زد، په سمندر کې د کانو جوړ شوی ځلی؛ ۷) د اوبو په منځ کې وچوبه، ټاپو، جزیره.

**ټانګاري** (ṭāngārí) ښځ.م. وګ. ټامته.

**ټانګتوره** (ṭāngturá) ښځ.م. داتوره، دمتوره، یو تریخ بوټی دی چې د درملو په ډول استعمالېږي

**ټانګر** (ṭāngár) نر.م. کنګر، کنګر، ښاروبو خوړلی د جوارو ټانټه.

**ټانګو**[1] (ṭāngú) نر.م. غرنی ناک.

**ټانګو**[2] (ṭāngó) ښځ.م. هن. Ton'go ټانګو، د ټانګو نڅا، اسپانوی ځلور ضربیزه نڅا.

**ټانګه** (ṭāngá) ښځ.م. ۱) د ناک د ونې په شمېر یوه ونه ده خو مېوه یې له ناک سره توپیر لري؛ ۲) ګاډی، بګی، د سورلۍ یوه وسیله.

**ټانګی** (ṭāngáy) ښځ.م. ۱) یوه غرنۍ ونه ده؛ ۲) پانګی، پر اورو د اوبو ورلو او ړد لرګی.

**ټانګی** (ṭāngáy) نر.م. اوچته هواره څمکه.

**ټاه** (ṭāh) نر.م. کرت، خبره، ګریده، ګرېدا.

**ټایپ** (ṭāyp) نر.م. ۱) ټاپه، خاپ؛ ۲ چاپ، مارکه؛ ۳) ټوکم، کهول؛ ٤) نمونه، ډول، ټیپ، مثال، ښکارندوی، سمبول؛ ٥) د ټایپ ماشین.

**ټایپوګرافر** (ṭāypográf) نر.م. د توري اودونې ماشین.

**ټایپوګرافي** (ṭāypogrāfí) ښځ.م. د چاپ فن، د کوم څه د بیان او تعریف فن چې د علامو، نښو او رمزي نښانو په بڼه وي.

**ټایپولوجي** (ṭāypolojí) ښځ.م. شهل یا نور ... ډلونه پېژندنه، نښې نښانې پېژندنه.

**ټایپیسټ** (ṭāypíst) نر.م. ټایپوونکی، په ټیپ لیکونکی.

**ټایفس** (ṭāyfás) ا. نر.م. وګ. توره تبه.

**ټایر** (ṭāyir) نر.م. (ج. ټایرونه) ټیر، د موټر، موټرسایکل، بایسکل او نورو ربړینه پایه.

**ټایلیټ** (ṭāylít) نر.م. ۱) توالت، دځان سینګارونې مېز؛ ۲) مکان، بیت الخلا، تشی، باس.

**ټب** (ṭab) نر.م. ۱) طشت، لګن، اوسپنیز یا کودین د لمبلو لوښی؛ ۲) ټپ، ډېران.

**ټبر** (ṭabár) نر.م. (ج. ټبرونه) خپلخانه، خاندان، قبیله، کورنۍ.

**ټبرنی** (ṭabaranáy) ص. ټبرېز، قبیلوي، قبایلي.

**ټبروال** (ṭabarwā́l) ص. ټبریال، قامپال.

**ټبرواله** (ṭabarwā́la) ا. قومپالنه، قومپالي.

**ټبکی** (ṭabakáy) نر.م. ۱) دوغل، غار، ټپلی؛ ۲) مایه، د کوچنیانو د ګاټو او دمردکیو په لوبه کې هغه کوټی چې مردکې او ګاټې وراچوي.

**ټبوټبوک** (ṭabuṭabúk) نر.م. غرنی بلبل.

**ټپ** (ṭap) نر.م. تاکیدي کلیمه ده چې له صفت سره د مختارۍ په ډول راځي؛ ۲) داغ؛ ۳) پرهار، زخم ٤) د یو شي د وهلو اواز؛ ٥) ترلی، کتاب بندول ٦) کمزوری، ډنګر؛ ۷) ډېران، ډومبوری، ټب؛ ۸) د کربرۍ ونه؛ ۹) خلاص، مرګ ته نږدې.

**ټپا** (ṭapā́) ښځ.م. د ټالي وهلو اواز.

**ټپال** (ṭapā́l) نر.م. ۱) وار، ځل؛ ۲) څغل، منډه، ځغستا؛ ۳) پیغام ورنه؛ ٤) استازی، ځری، ډاګي؛ ٥) د ځغلولو کار، خره یا کچرې د مزدورۍ لپاره ځغلول.

**ټپالي** (ṭapālí) ص. نر.م. ۱) پیغام رسانند؛ ۲) خواري ایستونکی؛ ۳) خرکار، هغه خرکار چې خره د بار وړلو او اړولو لپاره ځغلوي.

**تپ پت** (tappát) ص.م.ج. تت پت، بې‌مانا، چټي، فضول، جزئي.

**تپ تپ** (taptáp) نـر.م. ۱) قهر، غوسه؛ ۲) ددرو شپانو د وهلو غږ او اواز.

**تپ تپانی** (taptapā́nay) نر.م. تپ تپانی، الاداد کوچنیانو یوه لوبه ده.

**تپتور** (taptór) ص. نـر.م.ج. تپ تور، هغه څوک چې د سترګو لید یې کمزوری وي.

**تپ تیپ** (taptíp) ص. نـر.م.ج. ۱) کمـزوری، دنګر؛ ۲) زوړ، بوډا، عمرخوړلی، سپین‌ږیری؛ ۳) په ملاکروپ، په ملا کوږ.

**تپرا** (taparā́) ص. نب. ۱) وېـرېـدلی، ډار شوی، بـوږنېدلی؛ ۲) خیـال ســاتونکی، محـتـاط؛ ۳) کرکجن؛ ٤) کمزوری؛ ٥) اواره، سرګردان.

**تپرېدل** (taparedә́l) مص. ل. ۱) رندو غـوندې پـه وېره وېره ګام اوچـتول؛ ۲) دخـواخوږۍ له‌مخې (په کوم څه یا چا) لړزېدل، زړه ترل؛ ٤) د چا پر تکلیف زهیرېدل؛ ٥) رپېدل، ترپېدل.

**تپړ** (tapә́r) نر.م. ۱) سونډي توکر، سونډین توکر؛ ۲) هغه پړی چې د شولو ګېډۍ پرې تړي.

**تپړا** (tapaṛā́) ښځ.م ۱) دکولال هغه آله چې خاورین لوښي پرې هواروي؛ ۲) خټ موښې (ګلماله).

**تپرسو** (taparsú) نر.م. یو ډول وابنه دي.

**تپس** (tapós) نـر.م. تپوس، غلیواز، کـمڅـټ، یو مردار خور مرغه دی.

**تپساری** (tapsā́ray) ص. نـر.م. محتاج، عاجز، مظلوم، بې وسه، ملامت.

**تپسوری** (tapsúray) نر.م. و.ګ. تپساری.

**تپک** (tapák) نر.م. و.ګ. تپاره.

**تپکی** (tapakáy) ص. نـر.م. ۱) سـخت ناروغ؛ ۲) د ...... یو ډول لوبه.

**تپګی** (tapgáy) نـر.م. ۱) وروکي زخم، کرچنی پرهار؛ ۲) غار، سوره؛ ۳) خندق، کنده.

**تپل** (tapә́l) مص. مت. و.ګ. تاپل.

**تپلن** (taplán) ص. نر.م.ج. کوي وهلی، پمن مخی، تپلی، چیک مخی، چیچکي، ګنډلمخی.

**تپلی** (tapә́lay) ص. نـر.م. ۱) سست، لټ؛ ۲) خپسي خاروی.

**تپن** (tapán) نر.م. لږ سبا ناري، ناشتا، زرخوړی.

**تپنا** (tapána) نر.م. و.ګ. تپرا.

**تپنه** (tapәna) ښځ.م. بېکاره، وزګار، لیه، لایه.

**تپڼ** (tapáṇ) نر.م. ۱) ګونی، ګوڼی، بوجی، خلته، بوری، جوال؛ ۲) تپړ، پړی، رسی.

**تپو** (tapū́) نر.م. تاپو، برج، اتاري.

**تپو تپ** (taputáp) نر.م. د تپ تپ اواز.

**تپوسی** (tapusáy) ښځ.م. یو ډول کوتره ده.

**تپوک** (tapúk) نر.م. (ج. تپوکان) ۱) پوستین؛ ۲) تمانچه؛ ۳) چاپېره، چپلاخه، څاپېړه.

**تپول** (tapawә́l) مص. مت. ۱) تپ کـول، بندول؛ ۲) شاباسی ورکول؛ ۳) لمسول؛ ٤) وهل.

**تپه** (tapá) ښځ.م. (ج. تپې) ۱) درڅه، دریڅه، کړکۍ؛ ۲) لنډۍ، ټکی، د پښتو د اولسی شاعـرۍ یو ډول نظم دی چې دوې مسرې لري؛ ۳) و.ګ. تپه؛ ٤) چاپ، مهر، ښنه؛ ٥) کـرامـت؛ ٦) رقعه، یادښت؛ ۷) پټي؛ ۷) بیانه، تپی، سېښی.

**تپه تغره** (tapatağā́ra) ښځ.م. نېستي، غربېي، لوږ لغړتوب، مخ یوې خواته نه ګرځېدل.

**تپه ییز** (tapayíz) ص. د تپې، تپې تـه اړوند، مسره ییز.

**تپی** (tapáy) ښځ.م. ۱) تاپی، څپیاکه، تپی، هغه خوشایي چې د سوځـولـو لپاره وچ شـوي دي؛ ۲) بیانه، سېښی، بیونه.

ټپي (tapí) نر.م. زخمي، داغلی، ګايل.

ټپی (tapáy) نر.م. (ج.ټپي) ۱) خدايي خال، تپی؛ ۲) د پښې باد نيول، د جوړونو درد؛ ۳) په کميس باندې د کښېدې کار.

ټپېرى (taperáy) نر.م. (ج.ټپېري) خښتې اچوونکی، خښتمال، خښتې جوړوونکی.

ټپي مار (tapaymār) نر.م. ګوس، منګور، کپچه مار، ورکوټی مار.

ټپين (tapín) نر.م. ټپي ټپی، تکي تکي، داغدار، خاپ خاپ، چوخی مخی.

ټت (tat) نر.م. ۱) چټی غږېدونکی؛ ۲) تيز، تيز.

ټتار (tatār) نر.م. ترتهار، چټي او عبثې خبرې.

ټت پت (tatpát) نر.م. ۱) چټي او عبثې خبرې، اپلتې؛ ۲) تکه پوکه، اندک څيزونه.

ټت ټت (tattat) نر.م. ۱) د برې خبرې، کرتې؛ ۲) لاپې، دوزې، د ويار او لويي خبرې.

ټتن (tatán) ص.نر.م.ج. چټيات ويونکی؛ باټو.

ټتنګه (tatangá) ښځ.م. يو ډول چرچنه، چنچنه.

ټتو (tatū) ص.نب. اپلتې ويونکی، کرتو.

ټتول (tatawal) مص. مت. ۱) يو څوک په چټياتو راوستل؛ ۲) غوبل، ناروا کار ورسره کول.

ټتی (tatáy) نر.م. ۱) دورې کوونکی، کرتن، پوچ غږېدونکی، ټتو؛ ۲) بې مغزه، بې مغزو..

ټتې (tate) ښځ.ج. چټي خبرې، عبث خبرې.

ټتېدل (tatedal) مص. ل. ترتهدل، تربدل، عبث خبرې کول، ټت ټت کول، بکواس کول.

ټټ (tat) نر.م. ۱) غورې تمې، لاپې شاپې؛ ۲) کبر، غرور، لويي؛ ۳) مس، تانبه.

ټټار (tatār) نر.م. (ج.ټټاران) مسګر، ټټاري.

ټټارى (tatāray) نر.م. ټټری، ټپټغه، تغتغی، ټيغکی يو غټه مرغه چې باران غواړي.

ټټاري (tatārí) ښځ.م. ۱) شور، فرياد، شور، کريغ؛ ۲) ملعې سازي، مسګري.

ټټارې (titāre) ښځ.م. شور، فرياد، شور، غوربې.

ټټاونګ (tatāwang) نر.م. باټو، لاپو.

ټټخه (tatáxa) ښځ.م. ګوګل، سينه، ټټر، ټټی.

ټټر (tatár) نر.م. سينه، ټټخه، ګوګل.

ټټرا (titrā) عد. و ګ. تترا.

ټټرى (tatráy) نر.م. (ج. ټټري) ۱) سينه بند؛ ۲) لاپوک، غورتن.

ټټرۍ (tat...) ښځ.م. سدرۍ، واسکټ، هغه واسکټ چې په ټوکر کې يې مالوچ وي.

ټټک (taták) نر.م. و ګ. تلکه.

ټټنګ (tatáng) نر.م. ۱) بيابان، چول، ميره؛ ۲) تش لاس، غريبي.

ټټنګا (tatangā) ښځ.م. ټپغکه، يو ډول مرغه دی.

ټټو (tatū) نر.م. يابو، ټوټو، ټيټ شان اس، باري اس.

ټټوبه (tatobá) ښځ.م. (ج. ټټوبې) ملنډه، خندا، پچموزه، ټوکه.

ټټوګی (tatūgáy) نر.م. (ج. ټټوګي) ورکوټی ټټو، خوار ټټو، وروکی يابو.

ټټۍ (tatáy) ښځ.م. ۱) بيت الخلا، خاک نداز؛ ۲) کاروان سرای؛ ۳) غول، د کې متيازې.

ټټی (tatáy) نر.م. (ج. ټټي) ۱) دورې ټوکي، پوچ ويونکی؛ ۲) بې مغز، ناپوه، بې مغزو.

ټچ (tac) نر.م. ۱) د پوکنۍ د چاودلو اواز؛ ۲) قوت، زور؛ ۳) ارزان، بې ارزښته، پرېوتی، خوار.

ټخ (tax) نر.م. د ټوخې غږ، د ټوخلې غږ.

ټخ ټخ (taxtax) نر.م. ټوخېدنه، ټوخل.

ټخلۍ (taxaláy) ښځ.م. خولۍ، خېلی، هغه خولۍ چې خونه يې کې پټ وي، غوږ يې خولۍ.

**تخ مخ** (taxmax) ص. نر.م. تيت و پرک، خورورور، گډوډ، تخ مخ، تس نس.

**تخول** (taxawəl) مص. مت. و ګ. توخول.

**تر** (tar) نر.م. ۱) تغ، پر، د کښولو د باد اواز؛ ۲) د چنګښي اواز؛ ۳) عبثي خبري.

**تراجيډي** (trājidi) ص. نب. تراژيدي، تراژيډي؛ ۱) غم انګيزه ننداره؛ ۲) مصيبت، فاجعه.

**ترافيک** (trāfik) نر.م. ۱) ترافيک، هغه پوليس چي په سر کونو باندي د موټرانو د لاربښوونې دنده لري؛ ۲) په لويو واټونو، بحرونو او فضا کي د خلکو، عرادو، الوتکو تګ راتګ؛ ۳) ورنه راورنه، لېږدونه، عبور او مرور.

**تراک** (tarāk) نر.م. چتې، يوه وړه مرغۍ، چتکۍ، چترکۍ.

**تراکتور** (trāktor) نر.م. تراکتور، د عصري کرنې لپاره موټر ډوله ماشين.

**ترام** (trām) نر.م. ترام، تريم، يو ډول لوی بريښنا ګاډی چي د اوسپني پر پټليو باندي ځي.

**ترامبون** (trāmbon) نر.م. مو. بجه خانې ته ورته د موسيقۍ يوه اله ده.

**ترامپولين** (trāmpolin) نر.م. هغه جالي چي په اکروباتو کي کار تري اخيستل کېږي.

**تران** (trān) نر.م. شور، ځور، غالمغال.

**ترانزيټ** (trānzit) نر.م. ۱) سفر؛ ۲) تېرېدل، پوري وتنه؛ ۳) د ګمرکي ټکس له تحويلولو پرته د تجارتي مال تېرېدنه.

**ترانسپورټ** (trānsport) نر. ۱) ورنه راورنه، چلونه، د تجارتي مالونو او نورو شيانو ورنه راورنه؛ ۲) لاري، ټرک، جهاز، کښتۍ، اورګاډی، الوتکه چي مسافر او مالونه له يوه ځايه بل ځای ته وړي او راوړي.

**تراوو** (tarawū) ص. نر.م. ۱) ترېن، ترو؛ ۲) چټي غږېدونکی، عبث غږېدونکی.

**ترای** (trāy) عد. دري، دري برخي، دري چنده، په دري ډوله.

**ترايتون** (trāyton) نر.م. مو. د دريو آهنګونو فاصله، د دريو ګامونو واټن.

**ترای سيکل** (trāysikal) نر.م. دري ارابه ييزه، هغه بايسکل چي دري ارابې لري.

**ترای ګراف** (trāygrāf) ص. نر.م. متحد اللفظ دري حرفه، هغه دري توري چي يو اواز ورکړي.

**ترای مورفيک** (trāymorfik) ص. نر.م. دري وجهي، د دريو حالتو يا شکلو لرونکی.

**ترايي** (trāyi) ښځ.م. ۱) زيار، هاند، هڅه؛ ۲) ازمايښت، کتنه؛ ۳) له موټر چلوونکو نه ازموينه اخيستل.

**ترپر** (tarpar) نر.م. اپلتي، چټي خبري.

**ترتاوا** (tartāwā) ښځ.م. (ج. ترتاوي) ښځمي، خوشحالي، مزې، چرچې.

**ترتهار** (tratahār) نر.ج. چټي خبري، عبث خبري.

**ترتر** (tartar) نر.م. سپورې ستغې خبرې، چټيات.

**ترخاول** (tarxāwəl) مص. مت. ځان خلاصول، بهانې کول، په چل ځان خلاصول.

**ترسټ** (trast) نر.م. (ق.ا.) امانت، درايو وکالت، ترسټ، د شرکتونو انحصاري اتحاد.

**ترم** (tarm) نر.م. ۱) سمستر، تاکلی وخت، دوره، موده؛ ۲) اصطلاح؛ ۳) اړيکي؛ ٤) عدد.

**ترماتر** (tarmātar) نر.م. و ګ. تماتر.

**ترمپټ** (trampit) نر.م. مو. باجه، په موسيقۍ کي يوه بادي آله ده.

**ترمينالوجي** (tarmināloji) ښځ.م. فني کلېمي، علمي يا فني کليمي، اصطلاح پېژندنه

علمي يا فني نومونې، ترمينولوژي.

ترمينل (tarminál) ص. نر.م. د هوايي ډګر وداني، د الوتکې د کرېږې يا د اوسپنې د پټلۍ پای، پای، انتها.

ترن (tarán) نر.م. ۱) تېزن؛ ۲) ويرېدونکی، ډارن.

ترو (tarú) ص.نر.م. ۱) ترن، تېزن، تېـزن؛ ۲) چټي غږېدونکی، عبثې خبرې کوونکی.

تروپ (trūp) نر.م. تروپ، ډلـه، دسته، ټـولی، د عسکرو يوه ډله سپاره، ګروپ.

ترول (tarawə́l) مص. مت. ۱) په دستونو کـول، اسهالول؛ ۲) بدکار ورسره کول.

تريبيون (tribyū́n) نر.م. تريبون، د وينا دريغ يا يا کرسي، دخبرو کولو ځای، منبر.

تريلر (trelár) نـر.م. (ج. ترېلرونه) ډبه، واګـون، واګن، يدک، هغـه ډبه چې په مـوټر پورې ترل کېږي او درانه بارونه پکې وړي.

تريو (triyó) ښځ.م. مو. په غربي موسيقي کې درېو کسو سندرغاړو ته وايي.

تس[1] (tas) نر.م ۱) ګوزار، دڅپېړې غږ؛ ۲) لامل، سبب؛ ۳) پسات، چل؛ ٤) نوم، شهرت.

تس[2] (tus) ص.نر.م. توس، زوړ شی، خوړل شـوی شی، وروست، پوده.

تسا (tasā́) ښځ.م. تسهار، د تس تس اواز.

تس پس (taspə́s) ص. نر.م. ج ۱) عبث، فضول، چټي؛ ۲) بې ثباته، کچه، هيڅ.

تست (test) نـر.م. ازمېښت، امتحان، ازمايښت، محک، معيار.

تس تس (tastə́s) نر.م. ۱) پس پس، پسهار، ورو ورو خبرې؛ ۲) پټه ژړا، ورو ورو ژړا.

تس توس (tastū́s) نـر.م. ۱) د شـه شي د ماتېدو اواز؛ ۲) ټکر، ټکر، جنګ جګړه.

تسر (təsár) نـر.م. (ج. تسرونه) ۱) کچه وربښم، ساده وربښم؛ ۲) سونډې ټوکر، ټپسر.

تسري (tasrí) ص. نب. د تسر، تسرين.

تسک (təsák) ص. نر.م. ډارن، بې زړه، بېکاره.

تسکوری (taskoráy) نـر.م. چکـېده، په تناره کې ښخـېدلې ډوډۍ، بتسوری.

تسکی (tasakay) نر.م. ژړه غوني اواز، له غـرېږه د ک اواز.

تسکي (taski) ښځ.م. ۱) سستي، تنبلي، کهالي؛ ۲) پخوالي، پختوب.

تسکېدل (taskedə́l) مص. ل. تسکی کـول، ورو ورو ژړېدل، د ماشوم په سلګو ژړل.

تسلک (təslák) ص. نر.م ۱) بېړېدونکی، ډارن؛ ۲) پسکو، پسکن، پسکاوږ، تسن.

تسمس (təsmás) ص. نر.م. سست، لټ، تنبل.

تسن (təsán) نر.م. ۱) پسکاوږ؛ ۲) اومـرې مزې، اومرې تار؛ ۳) مجازاً ډارن..

تسو (təsū́) ص. نر.م. و.ګ. تسلک.

تسول (təsawə́l) مص. مت. ډبول، ډزول، وهل.

تسي (tə́si) ښځ.م. ۱) دروغ، ۲) لاپې شاپې.

تسې (tə́se) ښځ.م. ۱) پسکی؛ ۲) مجـازاً ډوزې، لاپې، دروغ، غورې.

تسېدل (təsedə́l) مص. ل. ډزېدل، ټکېدل، وهـل کېدل، غربېدل، ډبېدل.

تغ (təğ) نر.م. ۱) دسترګو پورتنۍ پرده؛ ۲) شنه قبا؛ ۳) شين تاغی، ديوه مرغه نوم؛ ٤) بانه؛ ۵) بتې سترګې؛ ٦) د چرګ د نيولو د وخت اواز.

تغر (təğár) نـر.م. ۱) ګليم؛ ۲) د ښيښتنو د يوې ټپې نوم؛ ۳) يو ډول ولـه.

تغره (təğára) ښځ.م. ۱) و.ګ. تپه تغـره؛ ۲) تغر [illegible]

**تغکی**[1] (ṭiğakáy) نر.م. و گ. تورغکی.
**تغکی**[2] (ṭuğakáy) نـر.م. ۱) ورگ. تغکی[1]؛ ۲) بورکی، نشه یې، په دچه کې، په غوره کې.
**تغل** (ṭağál) مص.مت. ۱) دوکه کول، تېر ویستل، تکېیل، تګل؛ ۲) تغول.
**تغلی** (ṭağálay) مف. نـر.م. ۱) دوکه شوی، تېر ایستی، تګېیلی؛ ۲) تغولی.
**تغمغ** (ṭağmág) نر.م. سخت والګی، سخت زکام.
**تغن** (ṭağán) ص. نر.م. ۱) دارن؛ ۳) شو. کوونکی، خورن؛ ٤) تورخېدونکی، تورخن.
**تغول** (ṭağawál) مص. مت. ۱) پر چرګـې باندې د تغ تغ اواز کول؛ ۲) شورول، تنګول.
**تغهار** (ṭağahā́r) نر.م. د چرګ د تغ تغ اواز.
**تغېدل** (ṭağedә́l) مص. ل. ۱) چـرګ د تغ تغ اواز کول؛ ۲) شورېدل، کرېدل، تنګېدل.
**تغېده** (ṭağedә́) نر.ج. ۱) تغاری کونه؛ ۲) کـرتې پرتې کونه؛ ۳) تزېده.
**تقار** (ṭaqā́r) نر.ج. ۱) تربې، تربهار؛ ۲) تکهار.
**تقول** (ṭaqawә́l) مص. مت. ۱) جزا ورکول، ډبول؛ ۲) کنځا کول؛ ۳) محکومول، ملامتول.
**تک** (ṭak) نر.م ۱) د توپک ډز؛ ۲) د کوم څه د لوېدو اواز؛ ۳) د څـارویو یـوه ناروغي ده؛ ٤) ګـند؛ ۵) وار؛ ٦) برید، پوله؛ ۷) پ. ک. د حـد مانا لري، د تک احترام په قبیله کې د هـر چا ژمنه ده؛ ۸) پلرنی میراث یا څمکه؛ ۹) د ختکیو د کرلو ځاي؛ ۱۰) هغه لرګی چې په سیوري سره یې وخت معلوموي؛ ۱۱) اعتراض؛ ۱۲) ګوزار؛ ۱۳) په حـلق او ستوني کې دانـه؛ ۱٤) کو ک، تکونه، بخې؛ ۱۵) تاکو.
**تکا**[1] (ṭakā́) ښځ.م. تکار، دزهار.
**تکا**[2] (ṭukā́) ښځ.م. توکېدنه، شنه کېدنه، سروهنه.

**تکارکی** (ṭakā́rkay) نر.م. وچه میره، ورځ ...
**تکاله** (ṭakā́la) ښځ.م. توکـه، توقـه، مسخره، (توکې) بیا ځلې (تکراري) ترند دی.
**تکالي** (ṭakā́lí) ص. نب. توکـي، توکمار.
**تکان** (ṭakā́n) نر.م. ۱) نوک وهـل، نوک خـوړنه، تیندک وهـنـه، د اس یا د بـل حیوان تیندک؛ ۲) چرک، تک، شـور خورل، زنګېدنه.
**تکان ګر** (ṭakā̆ngár) نر.م. دبی، د جوارو د بکرلو لرګی، د انګی، د جوارو کوتکی.
**تکانه** (ṭakānә́) ښځ.م. (ج. تکاني) ۱) اندازه، حد؛ ۲) تیکانه، پته، ادرس، د اوسېدو ځای.
**تکانه** (ṭikānә́) ښـځ.م. (ج. تکاني) ۱) تیـکار، آرام، دمه ځای؛ ۲) داوسېدو ځای، دېره، ناحیه.
**تکاو** (ṭikā́w) ښځ.م. ایسـارتیا، ایسارېدنه، ځای پر ځای کېدنه.
**تکاوېدل** (ṭikāwedә́l) مـص. ل. مېشـتېدنه، دېره کېدل، ځای پر ځای کېدل.
**تک پرک** (ṭakparák) نر.م. د مرز اواز.
**تک په تک** (ṭakpaṭák) ق. وار دواره، سـملاسي، له واره، ژر ترژره.
**تکټ** (ṭikéṭ) نر.م. تیکس، تکیس، لکه د سینما الوتکي، سرویس او ...
**تکټ پولي** (ṭikeṭpulí) ښځ.م. اق. تکټانه، ګټه اخیستل، ربح، بهره، سود، انترسټ، هغه مبلغ چې د بانګې د استعمال پر ځای تادیه شي.
**تک تک** (ṭakṭák) نر.م. ۱) د ګړي اواز؛ ۲) د درو شیانو له یوه بل سره د لګېدو اواز.
**تکتکانکه** (ṭakṭakānáka) ښـځ.م. ۱) تکتکانې د کوچنیانو یو ډول لوبه؛ ۲) یو ډول چینجی.
**تکتکانه** (ṭakṭakā́na) ښـځ.م. ۱) تکتکی، تکتکه، هغه لرګی چې د ژرندې پر پله ...

او ټکهار کوي؛ ۲) ټکټکنی، هغه مرغی چې د ونې ډډ ټکوي او چینجي ترې راوباسي او خوري.

**ټکټکانی** (ṭakṭakānáy) نر.م ۱) و.ګ. ټکټکانه ۲) د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**ټکټکه** (ṭakṭaká) ښځ.م. میده ښخی، پته ښخی، سکزی.

**ټکټکی** (ṭakṭakáy) نر.م. ۱) و.ګ. ټکټکانه؛ ۲) ډګډګی، ټپټپی، موټر سایکل.

**ټکټکۍ** (ṭakṭakə́y) ښځ.م. ۱) و.ګ. ټکټکانه؛ ۲) یو ډول مرغی ده.

**ټک ټوک** (ṭakṭū́k) نر.م. ۱) پرې پرې؛ ۲) ډزې، خال خال ډزې؛ ۳) سامان برابرول، تیاری؛ ٤) ونډې ونډې، برخه برخه.

**ټکټیک** (ṭakṭík) نر.م ۱) عس. تاکتیک، جګړه پوهنه، د محاربې د اجرا هنر؛ ۳) تدبیر، طرح، تکنیک، مانوره.

**ټکر** (ṭakár) نر.م. ۱) ټکره، ډغره؛ ۲) بُدری، تیندک؛ ۳) دوکه؛ ٤) نقصان؛ ٥) خرکاري؛ ٦) سو، ښخل، پوښته، بند.

**ټکرویی** (ṭakarwayáy) ا. ورته، مشابه، اتفاقي لفظ، له بلې ژبې سره د یوې ژبې د کوم ویي تصادفي یو رنګي.

**ټکرې** (ṭakaré) نر.م. ۱) هغه څوک چې د بل چا غم ورسره نه وي؛ ۲) هغه څوک چې له خرکارانو سره کار کوي.

**ټکری** (ṭikráy) نر.م. (ج. ټکري) پورنی، پړونی، لوپټه، څادر، مجازاً د ښځې په مفهوم راځي.

**ټکس** (ṭiks) نر.م. (ج. ټکسونه) مالیه، مالیات، باج، خراج.

**ټکسال** (ṭaksā́l) نر.م. ضرابخونه، دارالضرب، د سکې وهلو ځای.

**ټکسره** (ṭaksára) ښځ.م. (ج. ټکسرې) هغه مرغۍ چې پر سر یې داغ وي.

**ټکسری** (ṭaksaráy) ص. نر.م. (ج. ټکسري) بې شرم، بې حیا، سپین سترګی.

**ټکسي** (ṭiksí) ص.نب ۱) هغه موټر چې په پیسو خلک وړي راوړي؛ ۲) بدکاره سړی یا ښځه.

**ټکک** (ṭakák) ص. نر.م. ښخې ډک، ترخولې ډک، ترمورګو ډک.

**ټککه** (ṭakáka) ښځ.م. ټک، ټکک، د یوم یا ښل پرستۍ د پښې اېښودلو لپاره لګېدلی لرګی.

**ټک لاس** (ṭaklā́s) ص. نر.م. ۱) تکړه، چالاکه؛ ۲) ښه وپشتونکی؛ ۳) زورور، ورانکاری کوچنی (ماشوم).

**ټک له ټکه** (ṭaklaṭáka) ق. ۱) ټک په ټک، له ټکه، په ټکي، سملاسي؛ ۲) ناڅاپي مرګ.

**ټکن** (ṭakán) ص. نر.م. ټکې ټکې، ټکې ټکې، خالخالي، چکې چکې، دانې دانې.

**ټکنده** (ṭakandá) ص. ښځ.م. له ګرمۍ څخه سره شوې، له ګرمۍ نه ایشېدلې، د غرمې ستاینوم ټکنده غرمه.

**ټکنه** (ṭakaná) ښځ.م. مُهر، ټاپه.

**ټکنی** (ṭakanáy) ص. نر.م ۱) ډار شوی؛ ۲) زړغی، دوه زړی؛ ۳) ټپ سوری، مظلوم.

**ټکنۍ** (ṭakanə́y) ص. ښځ.م. ټکنده غرمه.

**ټکنیک** (ṭakník) نر.م. تکنیک، تخنیک، په هر فن یا هنر کې د اداکولو قاعده.

**ټکنه** (ṭakaná) ښځ.م. و.ګ. ټکنده.

**ټک و پتری** (ṭakopatráy) ص. له واره، ټکوپو، سملاسي.

**ټکوپو** (ṭakupū́) ق. ټک له ټکه، وار له واره، سم له لاسه، ناببره، ناګهانه، ناڅاپه.

**تک وتوک** (ṭakuṭúk) نر.م. ۱) پوله پله سره ډزې کول؛ ۲) ټکهار، ډزهار، ډزونه.

**تکوچ** (ṭakúč) نر.م. ګنډنه، ګنډل، ګنډون، د تنې پر ځای ټک ورکونه.

**تکور** (ṭakór) نر.م. ۱) تب، تپ ورکونه؛ ۲) جزا ورکونه؛ ۳) زیان وررسونه.

**تکورول** (ṭakorawál) مص. مت. ۱) تبل، تپل، تودول؛ ۲) زیان وررسول، تاوان ور اړول.

**تکوریدل** (ṭakoṛedál) مص. ل. ۱) تکور کېدل، تبل کېدل؛ ۲) تاواني کېدل، زیانمنېدل

**تکول** (ṭakawál) مص. مت. ۱) وهل، ډبول؛ ۲) کوټل؛ ۳) ټک ورکول، چیچل؛ ٤) خالونه وهل، ټیکه لګول؛ ٥) ځبول، ځنډل؛ ٦) ځپل؛ ۷) خصي کول.

**تکونی** (ṭakunáy) نر.م. مېښې، تکوونی، د ژرندې د پلونو تېره کوونکی.

**تکوڼ** (ṭakūṇ) نر.م. ۱) د کوچنیانو یو ډول لوبه؛ ۲) بیا زرغونېدنه، سروهنه.

**تکوونکی** (ṭakawū́nkay) فا. نر.م. ۱) وهونکی، ۲) کوټونکی؛ ۳) د فصل داندې بېلوونکی.

**تکوونی** (ṭakawūn ay) نر.م. ۱) د ډول لاستی، دبی، د تکولو آله؛ ۲) د تکېدو ور، ننګوني.

**تک وهل** (ṭakwahál) مص. مت. ۱) ځنډل، ځبول، تکول؛ ۲) منډل، ننه ایستل؛ ۳) تنې پورې کول؛ ٤) چیچل.

**تک وهلی** (ṭakwahálay) مف. نر.م. ۱) په ځمکه یا دېوال کې مېخ یا موړی ننه ایستلی؛ ۲) په ستن او سپېنسي سپین کې (تنې) الګولی؛ ۳) ځنډلی؛ ٤) لړې ویشتلی؛ ٥) تاواني کړی.

**تکه** (ṭaká) ښځ.م. (ج. تکې) غرنو وزه، غرڅه، غرڅنې لکه ...ی، سګه، سپیږه.

**تکه** (ṭáka) ښځ.م. (ج. تکې) ۱) نیمه انه، پیسه پخوانۍ سکه چې له دوو پیسو سره برابره وه؛ ۲) تندر؛ ۳) ناڅاپي بلا؛ ٤) دښمني؛ ٥) کرکه نفرت، پترورک؛ ٦) بغض، کینه؛ ۷) د مردکیو لوبه، د ټیکانو لوبه؛ ۸) چکچکه.

**تکهار** (ṭakahā́r) نر.ج. تکه توکه، د ټوپکو پرله پسې ډزې، د ټوپکو ډیدې بار.

**تکه توکه** (ṭakaṭūka) ښځ.م. ۱) تپاک، تک ټوک، لوبې کودې؛ ۲) تیاری؛ ۳) متقابلې ډزې.

**تکه چال** (ṭakačā́l) نر.م. خوب زنګوونکی.

**تکی** (ṭákay) نر.م. ۱) خال، خاپې، خاپ، داغ؛ ۲) نقطه؛ ۳) حرف، توری؛ ٤) کلیمه، لغت؛ ٥) شاڅکی؛ ٦) دیوې خبرې ثبوت؛ ۷) غیرت ۸) د یوې جلدي ناروغۍ نوم.

**تکۍ** (ṭakə́y) ښځ.م. ۱) بخسی، انځور ۲) انبه؛ ۳) د پنبې تلۍ؛ ٤) د ډوډۍ یا لمر ټیکلی؛ ٥) الندی، تکی؛ ٦) کرس کرس خندا؛ ۷) د مچوغنې ګوترې، کاسې؛ ۸) الرمې، لرمې، هغه سره داغونه چې پر بدن راښکاره کېږي او بیا ژر ورکېږي.

**تکیال** (ṭakyā́l) ص. تکن، تکیالی، تپلی، خالدار.

**تکي تکي** (ṭəkiṭəki) ص. نب. چخې چخې، خال خال، تکیالی، چکي چکي، داغ داغ.

**تکېدل** (ṭakedál) مص. ل. ۱) میده کېدل، پسنېدل ۲) وهل کېدل؛ ۳) ورو ورو لار وهل؛ ٤) کړاتلل، زره مړېدل؛ ٥) یو شي ته ګسنې نیول ٦) زرغونېدل؛ ۷) تویېدل؛ ۸) خسي کېدل.

**تګ** (ṭag) ص. نر.م. (ج. تګان) چالاک، دوکه باز، دروهي، مکار، دروغجن، تګمار، چلولي.

**تګل** (tagál) مص. مت. ۱) تګیل، دوکه ورکول، تګ کول؛ ۲) کوکول، نفرت کول.

**ټګمار** (ṭagmā́r) ص. نر.م. وګ. ټګ.

**ټګماري** (ṭagmā́rī) نر.م. ټګي، چل، دوکه.

**ټګنه** (ṭagə́na) ښځ.م. (ج. ټګنې) ټګي کونه، ټګېنه، دوکه کونه، غولونه، تېر ايستنه.

**ټګونکی** (ṭagúnkay) ص.نر.م. ټګ، ټګمار.

**ټل** (ṭal) نر.م. ۱) ملګري، دوست، ګډ؛ ۲) قبيله، طايفه؛ ۳) ګڼ؛ ٤) د يوه کلي يا سيمې برخه؛ ٥) چم، محلت؛ ٦) باړې، له کورو سره نږدې ځمکه؛ ۷) د ګلو ګېډۍ؛ ۸) نيرد بوالي؛ ۹) حد، پوله، بريد؛ ۱۰) د لرګيو جاله.

**ټلتوب** (ṭaltób) نر.م. ټلوالي، ملګرتيا.

**ټلګی** (ṭalgáy) نر.م. (ج. ټلګي) ۱) وروکی ټل، ټلګوټی؛ ۲) ګڼ او قوي کښت.

**ټلی** (ṭaláy) ښځ.م. زنګ، لکه د ساعت زنګ يا د ښوونځي.

**ټم** (ṭam) نر.م. ۱) د سپي غپا؛ ۲) ګڼه ګونه.

**ټماټر** (ṭamā́ṭar) نر.م. وګ. ټماټر.

**ټماغه** (ṭamāǧá) ښځ.م. افسري خولۍ.

**ټمباري** (ṭambā́rī) ښځ.م. ټمباري، بغاري، په ځيغو ځيغو ژړا، په کوکو کوکو ژړا.

**ټمبر** (ṭimbár) نر.م. ۱) د ودانۍ لرګي، شاه تير، بش؛ ۲) ځته، تنه.

**ټمبکه** (ṭambā́ka) ښځ.م. ډيوټ، د ډيوې تاخ، د ځراغ ځای؛ ۲) وګ. ټنبکه.

**ټمبل** (ṭambál) ص. نر.م. ۱) ټمبل، لټ، ناراسته؛ ۲) غټ، شورب.

**ټمبورين** (ṭamburín) نر.م. مو. زنګي دريه، دايره.

**ټمبه** (ṭambá) ص. نب. ۱) پرسېدلی، ټومبيا، هغه حيوان چې خېټه يې د اغېرتيا له لامله ډډه شوې وي؛ ۲) قبض؛ ۳) سرزوري.

**ټمبيل** (ṭambél) ص. نر.م. ټنبيل، ډډيو، پرسېدلی.

**ټم ټم** (ṭamṭám) نر.م. ګاډی، بګی.

**ټمټمی** (ṭamṭamáy) نر.م. غزی، يو ډول مرغه دی چې اوږدې پښې لري او په اوبو کې ژوند کوي.

**ټمټی** (ṭamṭáy) ص نر.م. ۱) ټيټکی، لنډی، ټيټ قدی؛ ۲) لنډ لاستی بېل، بېلچه.

**ټمټېرۍ** (ṭamṭeráy) نر.م. لنډی، منډری، لنډقدی.

**ټمټېل** (ṭamṭél) نر.م. ۱) ځاری، د يوې مرغۍ نوم دی؛ ۲) د خلکو ګڼه ګونه، ازدحام.

**ټمول** (ṭamawə́l) مص. مت. ۱) غپول، سپي په غپا راوستل؛ ۲) په اپلتو لګيا کول.

**ټمېدل** (ṭamedə́l) مص.ل. ۱) غپېدل، غپ غپ کول؛ ۲) فضول غږېدل، چتيات ويل.

**ټن** (ṭon) نر.م. (ج. ټنونه) د وزن او تول يوه ټاکلې پيمانه ده چې زر کيلوګرامه کېږي.

**ټنبکه** (ṭanbā́ka) ښځ.م. ۱) د مچيو دمبکی، د بمبرو دمبکی؛ ۲) ګبين، ګبينه، د غلوزو کندو، ګبينو د مچيو ټمبکه (کندو).

**ټنټه** (ṭanṭá) ښځ.م. ۱) ټانټه؛ ۲) بلوا، اله ګوله، اروډور؛ ۳) پتنه، شخړه.

**ټنجه پنجه** (ṭanjapánja) ښځ.م. ناز، نخره، مکيز.

**ټنډ** (ṭanḍ) ص. نر.م ۱) پرسېدلی، شورب؛ ۲) مرور ۳) نا خصي شوی غويی؛ ٤) سخت زړی، بې‌رحمه؛ ٥) بدمعاش؛ ٦) وګ. ټنډان.

**ټنډان** (ṭanḍā́n) ص. نر.م. ج. يو ډول کندهاري انګور دي.

**ټنډتوب** (ṭanḍtób) نر.م. ۱) ټنډوالي، ډډوالي، غټوالي؛ ۲) بدمعاشي، نفس پالنه.

**ټنډتوت** (ṭanḍtū́t) نر.م. يو ډول توت دی.

**ټنډتيا** (ṭanḍtyā́) ښځ.م. بدمعاشي، نفس پالنه، بداخلاقي، وران کاري.

**ټنډر** (ṭanḍár) ص. نر.م. وران، ...

**ټنډغرکی** (ṭandğarkáy) ص. نــر.م. ۱) خېتنا، خېتور؛ ۲) چاغ هلک؛ ۳) اينـده، سخـونډر، ځوان خوسی چې خصي شوی نه وي.

**ټنډکی** (ṭandakáy) ص. نر.م. غونډ منډ، گـردی منډری، ډډ خېتی.

**ټنډکی** (ṭandakáy) ښځ.م. ورو لبنته، چوکه.

**ټنډو** (ṭandū́) ص. نر.م. ۱) پرسېدلی، غټ خېتی؛ ۲) خېتور، گېډو، گېډپال.

**ټنډور** (ṭandór) نر.م ۱) په تودو شگو کې د جنغوزو پخول، په بټ کې د چنو او جنغوزو نيـني کـول؛ ۲) انبار، انبالي؛ ۳) شور شور، ژړا، وير.

**ټنډورول** (ṭandorawə́l) مص.مت. ۱) په بټ کې ځنغوزي وريتول، دچنو نيني کول؛ ۲) انبارول، انبارول، دلی کول، کوټه کول.

**ټنډول** (ṭandawə́l) مص.مت. ۱) پرســول، ډډول، ډکول؛ ۲) په ناروا ډول پردی ښځه بلاربول.

**ټنډويک** (ṭandwík) نر.م. گـډوزی، کاريوزی، د بتې گوتې اودشهادت دگوتې ترمنځ فاصله.

**ټنډه** (ṭánda) ښځ.م. (ج. ټنډي) ۱) پرسېدلې، ډډه؛ ۲) ورله خره؛ ۳) بلاربه ښځـه، بدلمنې ښځه؛ ٤) ټنډه ټمبه، هغه حيوان چې د زيات خـوراک له لامله وپرسېږي؛ ٥) ټنډي، وچوېلي، وچولی.

**ټنډه** (ṭínda) ښځ.م. ۱) يو ډول سابه؛ ۲) پرسېدلې منډرې سرې.

**ټنډه خره** (ṭandaxrá) ښځ.م. ړنده خره، د کوچنيانو يو ډول لوبه ده.

**ټنډه ليک** (ṭandalík) نر.م. تندي ليک، برخليک، تقدير، ازل.

**ټنډۍ** (ṭanḍáy) ښځ.م. لبنته، چوکه.

**ټنډۍ** (ṭṭanḍáy) ښځ.م. د کـبانو يو ډول نسـل دی چې زيات واړه او تور رنگ لري.

**ټنډېدل** (ṭanḍedə́l) مص.ل. ۱) پرسېدل، ډډېدل؛ ۲) بلاربېدل، حامله کېدل، امېندوربېدل.

**ټنډېل** (ṭanḍél) نر.م. غار، تونل، سرنگ.

**ټنگ** (ṭang) نر.م. ۱) د ترنگ غږ؛ ۲) دساز اواز.

**ټنگا** (ṭangā́) ښځ.م. پر له پسې غږ.

**ټنگ ټکور** (ṭangṭakór) نـر.م. مجلس، سرود، ساز او اواز.

**ټنگ ټونگ** (ṭangṭū́ng) نر.م. ۱) د ساز او سرود غږ؛ ۲) د فلزي لوښو د جنگېدلو اواز.

**ټنگول** (ṭangawə́l) مص.مت. ۱) ترنگول، درنگول؛ ۲) د فلزي لـوښو و بله جنگـول؛ ۳) ساعت په زنگ راوستل.

**ټنگه** (ṭangá) ښځ.م. ۱) په افغانســتان کې د يوې سيکې نوم و چې د شلـــو پيسو يا ايکيو سره برابره وه؛ ۲) پانگه، سرمايه، شتمني.

**ټنگه سری** (ṭangasáray) ص. نـر.م. پيسه سری، پيسه دوست، پر پيسو مين، کنجوس.

**ټنگېدل** (ṭangedə́l) مص.ل. ترنگېدل، شرنگېدل، درنگېدل، کرنگېدل، شرنگېدل.

**ټنن** (ṭanán) ص. نر.م. ۱) ډارن؛ ۲) دروغجن.

**ټوبخی** (ṭobaxáy) نر.م. د شگو کوټه يا انبار.

**ټوبر کلوز** (ṭobarklóz) ص. نــر.م. T.B, t.b. سل، نری رنځ، ټي بي.

**ټوبکی** (ṭubakáy) نر.م. ۱) غار، سوړه، سوری؛ ۲) کوټی، کنده، کندری، دوغل.

**ټوبه** (ṭubá) ښځ.م. ژوره ځمکه، ړنده ځمکه، وسته.

**ټوبی** (ṭubáy) نر.م. د شگو ډېری چې ځلور خواوې يې شاړه او پاس سر يې شين وي.

**ټوپ**[1] (ṭup) نر.م. ۱) ټيوب، نرم ربړي شی چې ټاير په منځ کې له هـوا ډکه‌ډکېږي؛ ۲) انتها، مقرر وخت، تاب، تاکلی وخت.

**توپ**[2] (top) نر.م ۱) ورت، جست، خېز؛ ۲) ډبرې ۳) لویه غونډۍ، لویه ټوپۍ؛ ٤) د جوارو دلۍ، د شولو دلۍ.

**توپال** (ṭupál) نر.م. (ج. توپالونه) ځاله، منځاله، جاله، منځوله.

**توپ تپانی** (topṭapā́nay) نر.م. دمنډې سیالي، د ټوپونو سیالي، ټوپلوبه.

**توپځن** (topǰán) ص. نر.م. توپ کوونکی، توپ وهونکی، انګځن، ورټونکی.

**توپخن** (topxán) نر.م. دخاورو ډېرې یا غونډۍ.

**توپدره** (topdára) ا. توپتخته، د توپ وهلو دره.

**توپک** (topák) نر.م. وګ. توپک.

**توپک تیار** (topaktayā́r) پوځي بولۍ (قومانده)، د تیارېدو او چمتوکېدو پوځي حکم.

**توپکوال** (topakwā́l) ص. توپک والا، وسله وال.

**توپکي** (topakí) ص. وګ.: توپکوال.

**توپکی** (ṭupakáy) ښځ.م. د کاریزه پته برخه، په کانو سره د کاریز پوښل شوې برخه.

**توپل** (topál) نر.م. ۱) شمبله، څوکه؛ ۲) دتاج طره (جوغه)؛ ۳) څوکه، سر؛ ٤) مص. مت. خاوري غونډۍ کول؛ ۲) توپ وهل، ورټل، دانګل.

**توپ مار** (topmā́r) ص. نر.م. توپ وهونکی، توپ ځن، ورټونکی، توپ اچوونکی.

**توپن** (topán) نر.م. نړۍ، دنیا، جهان.

**توپنای** (topnā́y) نر.م. مسافر، پردېس، جلا وطن.

**توپنی** (topanáy) نر.م. ۱) دکوچنیانو یوه لوبه ده؛ ۲) سیلانی، سیاح، تورست.

**توپنۍ** (topanáy) ښځ.م. ډبرۍ، غونډۍ، ټوپۍ.

**توپوګرافي** (topografī́) ښځ.م. ۱) د شای او سیمې څېره، نقشه، نقشه کښي، مساحي؛ ۲) د ځایونو سیمو او مشرح تشریح.

**توپولوجي** (topolojí) ښځ. م. خسای پېژندنه، جغرافیایي وضعیت، مکان پېژندنه.

**توپه** (topá) ښځ.م. معجزه، عجیبه، حیرانوونکی.

**توپۍ** (topáy) ښځ.م. ۱) ډېرۍ، انبار؛ ۲) د چلم سرخانه؛ ٤) پتاقۍ؛ ٥) خولۍ؛ ٦) یو ډول لوبه.

**توپي** (topí) ص. نب. ۱) توپ وهونکی، توپځن، دانګونکی؛ ۲) چالاک، تېز.

**توپۍ ګل** (topaygwál) نر.م. د بابونې ګل، یو دول دارو، یو ډول درمل بوټی.

**توتار** (totā́r) نر.م. ټوکه، ساطور، ساتول، هډګپ، کوته خره، هغه فلزي آله چې غوښې پرې ټوټې کوي.

**توتکه**[1] (totaká) ښځ.م. کاسې، دمچنوغزي پتاک د مچورغندې پتکی، د مچلوغزې کاسې.

**توتکه**[2] (totká) ښځ.م. ۱) تمونې تانې، تمونه، دود دستور، رسم ورواج، شفاهي طب؛ ۲) یو شمېر چارې دي چې ولسي وګړي یې دښوګڼ د راجلبولو او یا ایسته کولو لپاره ترسره کوي؛ ۳) هغه تحفه چې د ناوې کره ورله کېږي.

**توتکه مار** (totkamā́r) ص. نر.م. تونه مار، توتکه چي، توتکې کوونکی.

**توتکۍ** (totakáy) ښځ.م. ۱) تکۍ، د زنګانه سترګه؛ ۲) لرګینه کاسه، توتۍ؛ ۳) د کوناتي هډوکی، د ورانه هډوکی.

**توته** (totá) ښځ.م. ۱) ټوکر؛ ۲) برخه؛ ۳) اندازه، قطعه؛ ٤) سورنیا، سورنۍ؛ ٥) پیوند.

**توتی** (totáy) نر.م. ۱) وورن، اورخ؛ ۲) صندوق.

**توتي** (totí) ښځ.م. ۱) ویارنه، ستاینه؛ ۲) بدوینه، غندنه، بده غېږېدا.

**توتۍ** (totáy) ښځ.م. ۱) د لرګینه کاسه، لرګین کندولی؛ ۲) د تلکۍ سر، د تل سر.

**توتپل** (totpál) نر.م. د بوړه پوړي تال، د زنګلو هغه تال چې له بوړه پوړي وي.

**توتیل** (totél) نر.م. تیتاري، تیتمکه، تیتغی.

**توخ** (tux) نر.م. ۱) توخه، توخی کونه؛ ۲) د توخي اواز.

**توخل** (tuxə́l) مص.مت. توخېدل، کنګېدل.

**توخله** (toxə́la) ښځ.م. پوخله، شنه توخله، شنه غاړه، د توخي یو ډول دی.

**توخلی** (toxaláy) ښځ.م. خولی، یو ډول خولی، ګرمه خولی، پنبه یي خولی، ورینه خولی.

**توخول** (tuxawə́l) مص.مت. توخي وروستل، په توخو کول، په توخي کول.

**توخهار** (tuxahā́r) نر.م. د توخلي یا توخي پرله پسي غږ، په یوه مخ توخېدنه.

**توخی** (tuxáy) ښځ.م. توخی، کنګ، ټمخی.

**توخی** (tūxáy) نر.م. د توخېدلو اواز، توخی.

**توخېدل** (tuxedə́l) مص.ل ۱) په توخي سر کېدل، په توخي راتلل؛ ۲) اصطلاحاً: لـه چا نه د شه مرستې تمه لرل.

**توډي** (todí) ص.نر.م.ج.مو. له لس ګرنو تا تونو شخه د یوه ټاټ نوم دی.

**تور** (tur) نر.م. سیاحت، دوره، ګرځېدنه، دوران.

**توربین** (torbín) نر.م. توربین. پره لرونکی ماشین دی چې داوبو یا بخار په قوه شای پرځای څرخي اود برېښنا تولیدوونکي دستګاه په کار اچوي.

**تورنمنټ** (tornamínt) نر.م. د اتلولۍ سیالي، د لوبو د سیالي یوه مرحله یا دوره.

**توری**[1] (turáy) نر.م. دجوارو کوچنی وږی، د جوارو ورکوټی وږی، د جوارو غوټی.

**توری**[2] (toráy) نر.م. لاس لونی، چلمچی، د لاس مینځلو لښتی، دوشی، لګن.

**توري** (torí) ښځ.م. د تګی دکلمې تکراري ترکیب د تاکید په ډول راځي، لکه: تګی توری.

**توس** (tus) ص.نر.م.ج. ۱) وروست، خوسا، تپس؛ ۲) د تپس تکراري ترکیب.

**توسان** (tosā́n) نر.ج. هغه واوره چې د ولې په ښار غونډه او ګردې وي.

**توغ** (tuğ) ص.نر.م. ۱) راکوږ، کوپ؛ ۲) غوړ؛ ۳) مغرور، کبرجن؛ ٤) غلی، عاجز.

**توغ توغ** (tuğ tūğ) نر.م. ۱) ډېر کوږ، ډېر کوپ؛ ۲) ډېر متکبر؛ ۳) ډېر غلی، ډېر عاجز.

**توغک** (toğák) نر.م. تیغی، تیغکی، تغی، توغکی، د چرګانو یو ډول ناروغي ده.

**توغکی** (t(u,o)ğakáy) نر.م. و.ګ.: توغک.

**توغول** (tuğawə́l) مص.مت. ۱) تیتول، کږول، کوپول؛ ۲) ماتي ورکول؛ ۳) تر لاس لاندې راوستل.

**توغېدل** (tuğedə́l) مص.ل. ۱) تیتېدل، کږېدل، کوپېدل؛ ۲) ماتي خوړل، تر لاس لاندې کېدل.

**توقه** (tóqa) ښځ.م. (ج. توقې) توکه، مسخره.

**توقه ټکاله** (toqaṭakā́la) ښځ.م. توکې ټکالې، توکه ټکاله، توکې او مسخرې کونه.

**توک**[1] (tok) نر.م. تینګه او بدل شوې توته، کلکه توکړ؛ ۲) نری اواز؛ ۳) ټاک، تریو خوند؛ ٤) خیر؛ ٥) توکنه، اعتراض، نیوکه.

**توک**[2] (tuk) نر.م. ۱) توته، برخه؛ ۲) دکتاب جلد؛ ۳) د ووډی توته.

**توکا** (tukā́) ښځ.م. ۱) توکېدنه، شنه کېدنه؛ ۲) یو ډول شنه چینجی.

**توکار** (tokā́r) نر.م. ۱) کرکه؛ ۲) توکه، ساتول.

**توکان** (tokā́n) نر.م. و.ګ. ټاپوړه.

**توکبندي** (tukbandí) ... محبندي، ...

**ټوک ټوک** (ṭukṭúk) ص. نب. ټوټې ټوټې، پارچې پارچې.

**ټوک خور** (ṭukxór) ص. نر.م. (ج. ټوک خواره) غیره خور، سوالګر، ټوک ټولوونکی، وظیفه خور.

**ټوکر**(۱) (ṭokár) نر.م. ۱) قفس، پنجره، ټوکړ؛ ۲) ص. نر. م. زوړ، بوډا، ګوبير، ډوکر.

**ټوکر**(۲) (ṭukár) نر.م. ټوټه، ټوکره، رخت، کپړه.

**ټوکر ټوکر** (ṭukərṭukər) ص. نب. ټوټې ټوټې، ذرې ذرې، پارچې پارچې.

**ټوکره**(۱) (ṭokrá) ښځ.م. (ج. ټوکرې) ټوکرۍ، غټه ټوکری، سکری، شکری، غټه شکری.

**ټوکره**(۲) (ṭukrá) ښځ.م. ټوټه، پارچه، ذره.

**ټوکری** (ṭokráy) نر.م. ۱) ټوټه، پارچه، ریښکی؛ ۲) ټیکری، زړوکی، پرونی.

**ټوکرۍ** (ṭukráy) ښځ.م. شکری، سکری، ټوکره.

**ټوکري ساز** (ṭokrisā́z) ص. ټوکری جوړوونکی، ټوکری سازوونکی.

**ټوکریدل** (ṭukreyə́l) مص.مت. ټوک ټوک کول، ټوټې ټوټې کول.

**ټوکړ** (ṭokáṛ) نر.م. قفس، کپس، پنجره، ټوکر.

**ټوکړه** (ṭukṛá) ښځ.م. ۱) ټوټه، پارچه، ټوکره؛ ۲) رخت، ټوکر.

**ټوک زوت** (ṭokzwát) نر.م. ټوک جی، جفتسو تاق، ټوک جت، جفت و طاق.

**ټوکل** (ṭukə́l) مص. مت. ۱) کوتل، وهل؛ ۲) د چا خبره تالا کول، اعتراض کول؛ ۳) ځیرل، غوڅول ۴) ځای پر ځای سوری کول.

**ټوکلی** (ṭukláy) نر.م. په لاس اوبدل شوی شی، په لاس ګنډل شوی شي.

**ټوکمار** (ṭokmár) ص. نر.م. ټوکي، ټوقمار.

**ټوکنه** (ṭukə́na) ښځ.م. ۱) ټکونه، وهنه، ځپنه؛ ۲) نیوکه؛ ۳) ځیرنه، پرې کونه؛ ۴) ځای پر ځای سوری کونه

**ټوکول** (ṭūkawə́l) مص.مت. ۱) شنه کول، زرغونول ۲) روزل، تربیه کول.

**ټوکونی** (ṭukunáy) نر.م. ډېره وړه ټیکلی، ځکی، وړه ټیکلی.

**ټوک و ټول** (ṭuk-o-ṭól) (پوځي نومونه) جزوتام.

**ټوکه**(۱) (ṭóka) ښځ.م. ۱) مسخره، ملنډه؛ ۲) هډ کپ، ټوکیا، ساتول، ساطور.

**ټوکه**(۲) (ṭuká) ښځ.م. ۱) ټیکه غوا، هغه غوا چې د لوشلو په وخت کې پې تښتوي؛ ۲) دکار بز ځا؛ ۳) یو ډول مرغی (چنچنه)؛ ۴) سوری.

**ټوکی** (ṭūkay) نر.م. ۱) رخت، ټوکر؛ ۲) یو ډول تور رنګی بوټی دی؛ ۳) ساتول، ساتور.

**ټوکي** (ṭokí) ص. نب. ۱) ټوکمار؛ ۲) ټان، ټوکی؛ ۳) نر.م. بزاز، رخت خرڅوونکی.

**ټوکیا** (ṭukyā́) ښځ.م. ساتول، ساطور، هډ کپ.

**ټوکې ټکالې** (ṭokeṭakā́le) ښځ.ج. مسخرې، ټوکې، ټوکې وشتې.

**ټوکې وشتې** (ṭokewašté) ا. ټوکې ټکالې، ټوکې ټکرې.

**ټوکېدل** (ṭūkedə́l) مص.ل. ۱) زرغونېدل؛ ۲) د بدن کوم ځای د لګېدو په اثر شين کېدل؛ ۳) هغه ټوکر چې د زېږېدو له امله دوړېږي؛ ۴) ټوپېدل، رژېدل؛ ۵) امبار کېدل، دوړېدل.

**ټول**(۱) (ṭol) ص. نر.م. ج. ۱) واړه، ګرد، غونډ، درست؛ ۲) راغونډ، راټول؛ ۳) ټولی، ټولګی، جمعیت.

**ټول**(۲) (ṭul) نر.م. ټول، سورسانی، یو ډول ټوکر.

**ټول اوډن** (ṭoludə́n) ا. عاملنه

**ټولبندي** (ṭolbandí) ا. ټولون، پايلنيوى، د پايلو ولېندي.

**ټولپوښتنه** (ṭolpoṣ̌tə́na) ا. عامه رايه پوښتل، عامه رايه اخيستنه، ريفرندم.

**ټولتون** (ṭoltū́n) ا. پندغالى، مجمع.

**ټول تال** (ṭoltā́l) ق. ۱) تماماً، درست، له يوه سره همه واره؛ ۲) مجموعاً.

**ټولزېرمى** (ṭolzérmay) ا. ټولېزه (عامه) شتمني، عامه دارايي، بيت المال.

**ټولګر** (ṭolgár) ص. نر.م. ۱) سوالګر، سايل، توک ټولوونکى، توک غوښتونکى.

**ټولګټى** (ṭolgáṭay) ص. د ټولو په ګټه، عام المنفعه.

**ټولګه** (ṭolgá) ا. غونډ، مجموعه.

**ټولګى** (ṭolgáy) نر.م. ډله، ټولى، صنف، جمعيت.

**ټولګيخونه** (ṭolgixū́na) ا. د ټولګي کوټه، کلاس روم.

**ټولګيز** (ṭolgíz) ص. د ټولګي اړوند، جماعتي.

**ټولګيوال** (ṭolgaywā́l) ص. نر.م. هم صنف، همصنفي، ديوه ټولګي.

**ټولمنلى** (ṭolmanə́lay) ص. ټول خوښى، مقبول عام.

**ټولنپال** (ṭolanpā́l) ص. ټولنوال، ټولنپالونکى، سوسيال.

**ټولنپوهاند** (ṭolanpohā́nd) ټولنپوه، د ټولنپوهنې (سوسيالوجي) پوه، ځانګوال.

**ټولنپوهنه** (ṭolanpohə́na) ښځ.م. سوسيولوجي، علم الاجتماع، جامعه شناسي.

**ټولنپوهيز** (ṭolanpohī́z) ص. ټولنپوهنيز، د ټولنپوهنې اړوند.

**ټولنځېرنه** (ṭolancerə́na) ا. ټولنيزه څېړنه، د ټولنې څېړنه.

**ټولنوتيز** (ṭolanwatī́z) ص. اجتماعي اقتصادي.

**ټولنوده** (ṭolanwə́da) ا. د ټولنې وده، اجتماعي رشد.

**ټولنوم** (ṭolnū́m) (ګر.) عام اسم، عام نوم.

**ټولنه** (ṭolə́na) ښځ.م. ۱) غونډه، مجلس؛ اجتماع تشکيل؛ ۲) نفوس، جمعيت؛ ۴) سره يوځاى کېدنه؛ ۵) هيأت؛ ۶) چنده.

**ټولواک** (ṭolwā́k) نر.م. بادشاه، پاچا، باچا.

**ټولواکى** (ṭolwā́kay) نر.م. بادشاه، پاچا، مطلق العنان، ټولواګى، ټولواکمن.

**ټولوال پښويه** (ṭolwālpoṣóya) ا. ټولېزه يا عمومي پښويه، عمومي ګرامر.

**ټولول** (ṭolawə́l) مص. مت. بروول، يوځاى کول، راغونډول، جمع کول، ګردول.

**ټوله** (ṭóla) ښځ.م. ۱) درويزه، چر، ګدايي، غوښتنه؛ ۲) چنده، اعانه، ګرده.

**ټولى** (ṭoláy) نر.م. ۱) له څو بلوکونو څخه جوړ؛ ۲) ټولى، جمعيت، ډله

**ټولى** (ṭoláy) ښځ.م. وګ. ټولى.

**ټولېدل** (ṭoledə́l) مص. ل. ګرېدل، غونډېدل، يوځاى کېدل، جمع کېدل.

**ټولى مشر** (ṭolaymaš̌ə́r) نر.م. د ټولي مشر، د ټولي قوماندان، تورن.

**ټوم** (ṭum) نر.م. ۱) ټونګ، تحريک، لمسون، پارونه؛ ۲) مشوره، مصلحت.

**ټومب** (ṭumb) نر.م. ۱) چوخ، چخ، چيخ، ټومبنه؛ ۲) لمسون، پارونه؛ ۳) ستن وهنه.

**ټومبل** (ṭumbə́l) مص. مت. ۱) ټومبل، ننويستل، خښول؛ ۲) په غابښو کې خلال وهل؛ ۳) سکوندل تحريکول.

**ټومري** (ṭumri) ص. ښځ. و وګ. ټومري.

**ټون** (ṭon) نر.م. ۱) تـون، اواز، ږغ، د اواز درجـه، لحن، د اواز کیفیت، د لیکلو یا خبرو سبک او قاعده؛ ۲) مو. د دوو ټونونو ترمنځ د صوتي فاصلې واحد؛ ۳) هارمونیزه، د دوو شیانو تناظر او سره لګېدل.

**ټونالېټې** (ṭonāleṭé) ښځ.م. تونالیسته، د اواز څرنګوالی، آهنګ.

**ټونبوڼی** (ṭunbūṇay) نر.م. د ټونبلو آله.

**ټونټ** (ṭoníṭ) نر.م. مو. یو ډول عصري شپېلۍ ده چې بم اواز لري.

**ټونډینه** (ṭunḍiná) ښځ.م. د جوارو وږی، د جوارو سوټکې.

**ټونګ** (ṭung) نر.م. ۱) ټونګره، نوکا... چونډی، سکونډکه، چیچنه؛ ۲) مصلد... شوره؛ ۳) نوټکه وررسونه؛ ٤) نشتر.

**ټونګاره** (ṭūngāra) ښځ.م. ۱) نوکاره، چونډی، سکونډاره؛ ۲) کنځا؛ ۳) منبوکه وهل؛ ٤) په خوشکه کېدنه؛ ٥) لمسون، تحریک، پارونه.

**ټونګره** (ṭūngára) ښځ.م. ۱) ټونګـه، منبوکه؛ ۲) منبوکه وهنه، ټونګه وهنه.

**ټونګرېیل** (ṭūngreyál) مص. مت. ۱) نوکاره لګول، ټونګاره لګول سکونډل؛ ۲) په ټېټه تاوان رسول؛ ۳) په منبوکه وهل، په ټونګه وهل؛ ٤) قهرول، عصبي کول؛ ٥) کنځا کول.

**ټونګل** (ṭūngál) مص. مت. ۱) ټونګه ورکول، نوکارول؛ ۲) څوک په ګوته یا اشاره خبرې ته متوجه کول؛ ۳) تحریکول.

**ټونګوره** (ṭungóra) ښځ.م. اینګـه، انګه، ښغه ښځه چې د ناوې سره د زوم کورته ځي.

**ټونګه**[۱] (ṭungá) ښځ.م. ۱) منبوکه، ټونګاره؛ ۲) ...بلوسه؛ ۳) خوررونه، په قهررونه.

**ټونګه**[۲] (ṭónga) ښځ.م ۱) د ګوټي بند؛ ۲) د پښې تله، د پښې تلی.

**ټونیک** (ṭoník) ص. نر.م. ۱) طب. مقوي دوا، توان ببښونکی؛ ۲) مو. په اوازونو او ټونونو اړوند، د ټون، د اواز.

**ټې** (ṭe) ښځ.م. ۱) د «ټ» توري اواز؛ ۲) مو. د اووم ټون نوم چې «سي» هم ورته وایي.

**ټیپ**[۱] (ṭip) نر.م. ۱) په خښتوکي د سیمټو لګونه، د سیمټو لېټی؛ ۲) ټایپ، سمبول، نماینده، ډول، نمونه؛ ۳) ټوپ، ټپټه، ټاکلی وخت.

**ټیپ**[۲] (ṭayp) نر.م. ټایپ، ټایپ ریټر، د لیکلو ماشین؛ ۲) و.ګ. ټېپ ریکارډر.

**ټېپ**[۳] (ṭep) نر.م. ۱) له ټوکر، کاغذ، پلاستیک څخه جوړه اوږده، کم بره فیته؛ ۲) ټوټی، نلکه، نل؛ ۳) د ټېپ ریکارډر د اواز ثبتولو فیته.

**ټیپ ټاپ** (ṭipṭāp) نر.م. ۱) ښایست، ښکلا، ډول، سینګار؛ ۲) ځان ښوول.

**ټېپر** (ṭepár) نر.م.ج. شلغم، منګریته، ښنګریته.

**ټېپرکی** (ṭeparkáy) نر.م. ټېټکی، ټېمرکی، مندری، غونډکی، ټيټ غونډي سری.

**ټېپ ریکارډر** (ṭeprikārdár) نر.م. ټایپ، ټېپ، د اواز ثبتولو آله، د ضبط صوت وسیله.

**ټېپی** (ṭepáy) ښځ.م. ۱) ججوري، ججوره، چیره، جبره، جاغور؛ ۲) یو ډول کښېده.

**ټیټ** (ṭiṭ) ص. نر.م. ۱) کوز، کښته؛ ۲) لنډ، مندری سری؛ ۳) کوږ؛ ٤) ملامت، پړ.

**ټیټاری** (...ay) نر.م. ټیغی، ټټغی، ټیغکی، ټیټه ... یو ډول مرغه دی.

**ټیټاکه** (ṭiṭā́ka) ښځ.م. ازغکی، اغزکی، د کنجغري په ډول یو غرنی بوټی دی.

**ټیټاکی** (ṭiṭakay) نر.م. خمکه، جایداد، د وګړ.

**ټيټال** (ṭiṭā́l) نر.م. ۱) چاپلوسي، غوړه مالي؛ ۲) پستي؛ ۳) مکر، فريب، ټګي، چل.

**ټيټالی** (ṭiṭālā́y) ص. نر.م. ۱) چلولي، چلباز، ټګ؛ ۲) چاپلوس، غوړه مال.

**ټېټانوس** (ṭetānū́s) نر.م. ۱) يو راز ناروغي ده چې له زياتې يخنۍ څخه پيدا کيږي.

**ټيټ پاس** (ṭiṭpā́s) نر.م. ۱) چاپلوسي، غوړه مالي؛ ۲) راشه درشه، معاشرت.

**ټيټ پيټ** (ṭiṭpíṭ) ص. نر.م. ډېر ټيټ سړی، ډېر غونډی سړی، لنډی سړی، ټيټکی سړی.

**ټيټتوب** (ṭiṭṭób) نر.م. ۱) ټيټوالي، کښته والي، کته والي؛ ۲) پستوالي، رذالت، پستي.

**ټيټ سترګی** (ṭiṭstárgay) ص. نر.م. شرمنده، شرمېدلی، کوز سترګی، ملامت.

**ټېټسه** (ṭeṭasá) ښځ.م. د جوارو توکه، د جوارو توقه، د جوارو غوټي، د جوارو سوټکه.

**ټيټک** (ṭiṭák) نر.م. د کدو په څېر او د توري په اندازه يو ډول سابه دي.

**ټيټکه** (ṭiṭka) نر.م. تمبکي، لرمې، لړمکي، يو ډول ناروغي ده.

**ټيټکی** (ṭiṭakáy) ص. نر.م. غونډکی، ټيټ قدی.

**ټيټکۍ** (ṭiṭakə́y) ښځ.م. ۱) سترګۍ، د زنګانه سترګه، ګونډه؛ ۲) د ټيټکي مؤنث شکل.

**ټيټکې** (ṭiṭáke) ښځ.م. ۱) ټوپکې، ترپکې؛ ۲) هلې ځلې، کوښښ، زيار، زحمت.

**ټيټول** (ṭiṭawə́l) مص. مت. ۱) کښته کول، کوزول ۲) رانېږدې کول؛ ۳) سپکول ٤) کمزوري کول.

**ټيټه** (ṭī́ṭa) ښځ.م. ۱) خواره خبره، کمزورې خبره، سپکه خبره؛ ۲) د ټيټ مؤنث شکل.

**ټيټی** (ṭiṭáy) ص.نر.م. کوبی، شاکوبی، هغه سړی چې ملا يې پوټه وتلې وي.

**ټيټۍ** (ṭiṭə́y) ښځ.م. ۱) د توبې، د خاورو کاسه، د خاورو کندولی؛ ۲) د ټيټي مؤنث شکل.

**ټيټېدل** (ṭiṭedə́l) مص.ل ۱) کښته کېدل، کوزېدل؛ ۲) کږېدل، د تعظيم لپاره سر راښکته کېدل؛ ۳) سپکېدل؛ ٤) الرېدل، پېډل؛ ٥) شرمېدل

**ټېر** (ṭ(e,ay)r) نر.م. (ج. ټېرونه) وګ. ټاير.

**ټيز** (ṭiz) نر.م. (ج. ټيزونه) تيز، تغ، تر.

**ټيزن** (ṭizə́n) ص. نر.م. ۱) ټيزاون؛ ۲) داړن.

**ټيس پيس** (ṭispís) ص. نر.م. ۱) لټ، تنبل؛ ۲) ګډوډ او له منځه تللی.

**ټېغ** (ṭeğ) نر.م. (ج. ټېغونه) غرچې، اروړمې، اوری، د خولې له لارې په اواز سره د معدې د باد راوتل.

**ټيغ** (ṭiğ) نر.م (ج. ټيغونه) مردکه، مردکی، ټيک، ټيق، د کوچنيانو د لوبو مردکې.

**ټېغ تمبه** (teğtambá) ص. ښځ.م. ۱) قبض، تمبه؛ ۲) بدهضم؛ ۳) پريشان، خپه، زهير.

**ټيغ سترګی** (ṭiğstargáy) ص. نر.م. ړه سترګی، ړدی، برغاسترګی، تاغ سترګی.

**ټيغکه** (ṭiğáka) ښځ.م. ټټغه، يو ډول خړ رنګه کوچنۍ مرغۍ.

**ټيغکی** (ṭiğakáy) نر.م. ټغکی، ټغی، ټيغی، د چرګانو يو ډول ناروغي ده.

**ټيک** (ṭik) نر.م. ۱) چارګل، د ښځو د پزې ګاڼې؛ ۲) ټيکه، د تندي يو زېور دی؛ ۳) ص. نر.م. ۱) سم، صحيح؛ ۲) سپينتی، بېوی.

**ټېک** (ṭek) نر.م. ۱) ډډه، تکيه؛ ۲) ارام، دمه؛ ۳) ارام ځای، مسکن؛ ٤) تنکی، شفيقه.

**ټيکالخور** (ṭikālxór) ص. نر.م. ۱) مړی خور، ډوډۍ خور؛ ۲) ختپور، ګېډور، نسور.

**ټيکالمار** (ṭikālmár) ص. نر.م. ډوډيمار، ډوډۍ ... سوونکی، سخي، لنګري.

**تیکاله** (ṭikāla) ښځ.م. ۱) دوډۍ، مړی؛ تیکله نغن؛ ۲) ګوډی چرګ، کوکو پښی، بیبنکی.

**تېکانه** (ṭekāna) ښځ.م. د اوسېدو ځای، تېکاونه، استوګنځی، مسکن، سرپناه.

**تېکاو** (ṭekā́w) نر.م. ۱) دېره، استوګن؛ ۲) په دمه، په ارام، په استراحت.

**تېکاوول** (ṭekāwawə́l) مص.مت. ۱) استوګن کول، اوسول، دېره کول، مېشتول، تېکول؛ ۲) ارام کول، دمه کول.

**تېکاوېدل** (ṭekawedə́l) مص.ل. ۱) استوګن کېدل، اوسېدل؛ ۲) آرامېدل، دمه کېدل.

**تیکتاکه** (ṭiktā́ka) ښځ.م. پت داره غالیچه، پشمداره قالینچه، خرسک.

**تیک خولی** (ṭiyakxūlay) نر.م. جګ خولی توب، جهاز ویشتونکی توپ، دافع هوا.

**تیکری** (ṭikráy) ښځ.م. کوچنی غونډۍ.

**تیکری** (ṭikráy) نر.م. (ج. تیکري) ۱) پړونی، زروکی، څادر؛ ۲) د جوارۍ پړ؛ ۳) کودری، کودی، کودرکی.

**تیکس** (ṭikás) نر.م. تکس، تکټ.

**تېکس** (ṭeks) نر.م. و.ګ. تکس.

**تېکسي** (ṭeksí) نر.م ۱) و.ګ. تکسي؛ ۲) بدلمنه ښځه، بدفعله ښځه.

**تېک شوی** (ṭekšawáy) ص. نر.م ۱) دېره شوی مېشت شوی؛ ۲) دمه شوی، آرام شوی.

**تیکله** (ṭikála) ښځ.م. مړی، دوډۍ، نغن.

**تیکلی** (ṭikaláy) نر.م. ۱) ککوری، تیکله، ټکی، وره دوډۍ؛ ۲) خوږه کلچه.

**تیکه** (ṭiká) ښځ.م. ۱) ککشه، ققشه، هغه خال چې هندوان په تندي باندي لګوي ۲) څېره، د تندي یو ډول ګاڼه؛ ۳) ستن، ببیکاری..

**تېکه** (ṭeká) ښځ.م. ۱) اجاره، ذمه واري، په ذمه اخیستل، قرارداد؛ ۲) په پټو کي یو ډول لوبه.

**تېکه وال** (ṭekawā́l) ا. احصارګر، تېکه دار.

**تېکی** (ṭekáy) ښځ.م. ۱) یو ډول مرغۍ ده چې په سر یې ښنبه وي؛ ۲) څېره، د تندي یو ډول ګاڼه؛ ۳) تیکلی؛ ۴) غونډاري؛ ۵) یو ډول خواږه؛ ۶) د بدلې سروکی.

**تېکېدل** (ṭekedə́l) مص.ل. ۱) دېره کېدل، مېشت کېدل؛ ۲) دمه کېدل، آرامېدل.

**تیګه** (ṭigá) ص. نب. د نګرغوځکی، خوار غوایی.

**تېګی** (ṭegáy) نر.م. یو ډول ختکی.

**تېل** (ṭel) نر.م. ۱) ګڼه ګونه؛ ۲) دیکه، تېله، دغره، پوري وهنه.

**تیل تال** (ṭiltā́l) نر.م. ۱) تېل جد، تال متهول، انې بانې؛ ۲) د کوچنیانو شور او ځوږ.

**تېل تال** (ṭeltā́l) نر.م. ۱) ساتېري، تفریح؛ ۲) بازي، لوبه؛ ۳) توکه، مسخره.

**تېلفون** (ṭelefū́n) نر.م. تېلي فون، فون، لرغږون.

**تېلفون ګرام** (ṭelifūngrā́m) نر.م. تېلفوني پیغام او خبر، هغه تېلفوني موضوع چې پر کاغذ ولیکل شي.

**تېلماتېل** (ṭelmāṭél) نر.م. ۱) دېکسې، دکې، تېلي، زوربندي، غویمنډ، ګڼه ګونه.

**تېلمار** (ṭelmā́r) نر.م. تېله وهنه، دیکه ورکونه.

**تېله** (ṭelá) ښځ.م. ۱) دیکه، دغره؛ ۲) د اوبو د مخ ګرځولو لپاره کانیزبند، د لرګیو او خسو هغه ګېډۍ چې د اوبو په مخ کي اچول کېږي.

**تېله مار** (ṭelamā́r) نر.م. ۱) طفیلي، ببکاره؛ ۲) هغه څوک چې غټې تجارتي معاملې کوي.

**تېلیا** (ṭelyā́) ښځ.م ۱) الویه چاره؛ ۲) مهتر، سویس سائیس، د اسانو خدمتګار.

**ټيلي پاټي** (ṭelipāṭí) ص. نب. د ټلګرونو ارتباط پر له پله سره، د انډونو د اړيکې بحث.
**ټيليګراف** (ṭeligráf) نر.م. ټليګراف، تلګراف، د ټيليګراف دستګاه، د خبر رسولو آله.
**ټيليګرام** (ṭeligrām) نر.م. تلګرام، تلګراف کول ټيليګرام لېږل.
**ټيم** (ṭim) نر.م. ۱) پيپ، پيپه، او سپنيز لوښي؛ ۲) سپنځي، قلعي، هغه فلز چې ويلې کېږي او مسي لوښي پرې سپينېږي.
**ټيم** (ṭem) نر.م. ۱) وخت، ساعت؛ ۲) حال، وضع.
**ټيمک** (ṭimák) نر.م. ۱) د کېږدۍ يا تنبو لويه ستنه؛ ۲) د اوبو لـه کتـي (ځـل) نه د باندې راوتې لرګي، دسه؛ ۳) وړوکی ټيم، ټيمګی.
**ټيمګر** (ṭimgár) نـر.م. د ټيم کار کوونکی، ټيم جوړوونکی.
**ټيمګی** (ṭimgaráy) نر.م. ټيمک، ټيمګی.
**ټينخی** (ṭinxáy) ص. نر.م. دولې، ځان ښوونکی.
**ټينس** (ṭen(i,á)s) نر.م. يو ډول لوبه ده.
**ټينګ** (ṭing) ص. نـر.م.ج. ۱) پوخ، مضبـوط، کلک؛ ۲) د نرم او نري ضد؛ ۳) کنجوس، بخيل
**ټينګار** (ṭingā́r) نـر.م. ۱) اصـرار، تاکـيـد؛ ۲) ټينګوالی، مضبوطي، ثبات، کلکوالی.
**ټينګارادب** (ṭingāradáb) ا. مقـاومتـي ادب، مزاحمتي ادب.
**ټينګاري خځ** (ṭingārixáj) (ګر.) تاکـيدي خځ، تاکيدي فشار.

**ټينګاو** (ṭingáw) نر.م. ۱) ټېرون، ضبط و ربط؛ ۲) استحکام، محکموالی، مضبوطوالی.
**ټينګتار** (ṭingtā́r) نـر.م. ۱) تاکـيد، ټينګښا، ټينګتوب؛ ۲) ټينګ ارتباط، محکم تار.
**ټينګری** (ṭingaráy) نـر.م. ټينګـی، ټوسی، شاټينګه، چتی، د مرغانو معده، ټينګی.
**ټينګړ** (ṭingáṛ) نر.م. وګ. ترنګړ.
**ټينګړی** (ṭingṛáy) ښـځ.م. کـريش، ترينګلی، کته پيش، کته بوز.
**ټينګل** (ṭingál) نر.م. پلکه، کوکه، د پنې ميخ.
**ټينګول** (ṭingawál) مص. مـت. ۱) محکمـول، کلکـول؛ ۲) چاپې کـول، کېمنول؛ ۳) کلک نيول؛ ٤) ګاټه کول، ختـه کول؛ ٥) مجبورول.
**ټينګونی** (ṭingawū́nay) نـر.م. ۱) محکموونی، کلکونی، مضبوطونی، هغه شی چې يو بل شی پرې ټينګېږي، ګيرا؛ ۲) ساتندوی.
**ټينګه** (ṭingá) ښـځ.م. ۱) ټينګـون، سپاربستنه؛ ۲) محکمي، پوخوالی؛ ۳) شاټينګه، د مرغانو معده؛ ٤) ناغه، ترون؛ ٥) د ټينګ مؤنثه بڼه.
**ټيوب** (ṭyūb) نر.م. ۱) تـيوب، هغه نل چې د ربـړ، ښيښې يا کومې بلې مادې څخه جوړ شوې وي؛ ۲) د ملهم بوتل، د ملهم بوتلګی.
**ټيوبا** (ṭyubā́) نر.م. مـو. لـوی ترم، لويه باجه، يو ډول پخوانی ترمپټ.
**ټيوټېرکه** (ṭewṭeráka) ښځ.م. ټيوترکه، يو ډول چوغکه ده چې زياتره د اوبو پر غاړه ګرځي.

# ث

**ث** (se) ښځ.م. ثې، د پښتو په الفبې کې اووم توری چې ابجدي ارزښت يې ۵۰۰ دی.

**ثابت** (sābít) ص. نر.م. ۱) پوره، روغ، لوار؛ ۲) ټينګ؛ ۳) رښتياني، ثبوت شوی، پرځای.

**ثابتول** (sābitawə́l) مص. مت. ۱) ثبوتول، څرګندول؛ ۲) سرته رسول، مضبوطول، پوره کول؛ ۳) رښتيا کول، حقيقت ته رسول؛ ۴) ځای پر ځای کول، په ځای درول.

**ثابتېدل** (sābitedə́l) مص. ل. ۱) ثبوتېدل؛ ۲) محکمېدل؛ ۳) رښتيا کېدل؛ ۴) ځای پر ځای کېدل.

**ثاد** (sād) نر.م. زيم، لنده بل، نو. نم.

**ثاقب** (sāqíb) ص. نر.م. روښانه، ځلېدونکی، رون، ځلاند، ځلند، بريښېدونکی.

**ثانيه** (sāniyá) ښځ.م. شېبه، د يوې دقيقې شپېتمه برخه وخت.

**ثبات** (subā́t) نر.م. قرار، پوخوالی، پاېښت، ټينګوالی، متانت، کلکه دريدنه، استقرار.

**ثبت** (sabt) نر.م. ليکنه، داخلونه، درجونه، کښنه.

**ثبتول** (sabtawə́l) مص. مت. ۱) ليکل، داخلول، درجول، کښل؛ ۲) د اواز ټېپ کول (ټېپول).

**ثبتېدل** (sabtedə́l) مص.ل. ۱) ليکل کېدل، راجستري کېدل؛ ۲) بندېدل، په فيته بانـدې ټېپېدل.

**ثبوت** (subū́t) نر.م. ۱) سپيناوی، سپينونه، رښتيا کونه؛ ۲) دليل، د خبرې تصديق.

**ثرا** (sará) ښځ.م. ۱) ثری، ځمکه، خاوره؛ ۲) تاترين، د ځمکې ډېره لاندې برخه.

**ثروت** (sarwát) نر.م. شتمني، شته، بدايتوب، اصطـ. دولت، مال، غنا.

**ثريا** (surayá) ښځ.م. اووه ستوري، پېرونې، پروين، اووه خوېندې، پرې ووني.

**ثقافت** (saqāfát) نر.م. ۱) دود، دستور، رسم او رواج؛ ۲) کلچر، کولتور، فرهنګ؛ ۳) اخلاق د يوې تولنې تهذيب.

**ثقالت** (saqālát) نر.م. ۱) درونـدوالی، د وزن زياتوالی؛ ۲) د يوې کليمې درونډوالی.

**ثقل** (síqal) نر.م. درونډوالی، بوج، بار، وزن.

**ثقلين** (saqaláyn) نر.ج. ۱) دواړه جهانه، دنيا او آخرت، دنيا او عقبی؛ ۲) انسان او پيری.

**ثقه** (siqá) ص.مب. کره، معتبر، معتمد، د اعتبار وړ، بې غشه، آزمايل شوی.

**ثقيل** (saqíl) ص.نر.م ۱) درونډ؛ ۲) سخت، ګران ۳) په سختۍ سره هضمېدونکی خواړه؛ ٤) هغه کليمه چې ادا کول يې ګران وي.

**ثلاثي** (salāsí) ص.نب. ۱) دري توريزه کليمه، درې حرفيزه کليمه؛ ۲) درباعي په ډول د دريو شعرونو کلام.

**ثلث** (sols) ص.نر.م.ج. ۱) درييمه، برخه؛ ۲) خ. يو ډول ښکلی عربي ليک دی.

**ثمر** (samár) نر.م. ۱) ببره، مېوه، ثمره؛ ۲) فايده، ګټه؛ ۳) بدله؛ ٤) نتيجه، محصول.

**ثمن** (samán) نر.م. ۱) قيمت، اجرت؛ ۲) بيې؛ ۳) تمه، اتمه برخه.

**ثنا** (saná) ښځ.م. ستاينه، تعريف، حمد، صفت.

**ثناخوان** (sanāxwān) ص.نر.م. ستايونکی ثناويونکی، تعريف کوونکی.

**ثواب** (sawā́b) نر.م. ۱) اجر، بدله، عوض، مزد؛ ۲) نېکي، ښېګڼه، ښېګړه.

**ثوابت** (sawābít) نر.م. ۱) د ثابت جمع؛ ۲) ولاړ ستوري، هغه ستوري چې نه ګرځي.

**ثوابي** (sawābí) ص.نب. اجر لرونکی کار، د فايدې کار، د نېکۍ کار، د ښېګڼې کار، د خير کار.

**ثوب** (sawb) نر.م. ۱) جامه، کالي؛ ۲) د جامو په شمار لو کې پخوانيو ميرزايانو «ثوب» کليمه د تميز د کليمې په توګه کاروله.

**ثور** (sáw(a)r) نر.م. ۱) غويی، غوڅکی، غوسکی؛ ۲) د لمريز هجري کال دويمه مياشت.

# ج

ج( jim ) نـر.م. د پښتو الفبې اتم توری چې ابجدي ارزښت یې (۳) دی.

جابر ( jābír ) ص. نـر.م. (ج. جـابران) ۱)زورور، تکړه؛ ۲)ظالم،جبرکوونکی، تاوان‌رسوونکی ۳)هډ بند.

جابه( jāba ) ښځ.م.کوپی،کوبی، ډبه، هغه‌خرمني کوپۍ چې تېل یا غوړي په کې اچول کېږي.

جابی ( jābáy ) ښځ.م. ۱)خلکی، د نځېدونکو کمیس،جامن؛ ۲)د ښځې زنګونه.

جاپري ( jāpari ) ښځ.م. د پسونو د آش ورکړه شوو څرو پوستکو لوېه تخته چې د سندلۍ د بـرستن په ځای استعمالېږي.

جاتکی( jātkay ) نر.م(ج. جاتکي) هلک، زنکی، ژنی، ژنکی.

جاټ ( jāt ) ص. نر.م. ۱) هغه وګړي چې د څمکو په کاروبار اخته وي؛ ۲)تور رنګی؛ ۳)جټ، ناپوه.

جاج ( jāj ) نر.م. ۱)اندازه، قیـاس، جاییزه؛ ۲)اند، فکر، اندېښنه، پام، سوچ.

جاجل ( jājəl )م. فکر کول، اندل.

جاجونکی ( jājūnkay ) فا.نر.م.غمجن، فکرمن، اندېښمن، فکرکوونکی، په چورتوکې ډوب.

جاخه ( jāxá ) ښځ.م. د ونو او بوټو څانګې چې یو په بل کې ننوتې او تاو راتاو وي.

جادو ( jādū ) نر.م. کوډې، منتر، تونه، سحر.

جادوبیان ( jādūbayān ) ص. نـر.م. هغه څوک چې وینا او خبرې یې پر زړونو اغېز کوي.

جادوګر ( jādūgár ) ص. نر.م. (ج. جـادوګران) ۱)کـوډګر، جادو کـوونکی؛ ۲)ټګ، غولوونکی، تېرایستونکی.

جاده ( jādá ) ښـځ. م. (ج. جـادې) لاره، لـیار، په ښار کې یا له ښار نه د باندې لوی، پراخ واټ.

جاډنګ ( jāḍang ) ص. نر.م. ډنګر، کمزوری

 

**جاډی** (jāḍay) ښځ.م. ۱) کمزوري او بېکاره اوښه ۲) بوډۍ، زړه ښځه.

**جاذب** (jāzib) فا.نر.م. ۱) جذب کوونکی، راکښونکی؛ ۲) هغه کاغذ چې رنګ کښوي

**جاذبوالی** (jāzibwā́lay) نر.م. ښکلا، ښایست، راکښون، پیمختوب، ډولیتوب، جاذبیت.

**جاذبه** (jāzibá) ښځ.م. راښکنه، جذبونه، هغه قوه چې اجسام ځان ته راکښوي.

**جار** (jār) نر.م. ۱) ځار، قربان؛ ۲) ډنډوره؛ ۳) دشپېلۍ پرده؛ ٤) د مرزانو د نیولو لپاره مصنوعي ځنګل؛ ٥) دوچو خوشایو دراغونډولو ځای؛ ٦) درمند بادولو په وخت کې جال درول؛ ۷) دېوال؛ ۸) د سېلاب لپاره له تیرو پخه پوله ۹) ډنډوره، نغاره.

**جارایستل** (jāriistә́l) مص.مت. ۱) بېرته ګرځول، قی کول؛ ۲) دلاري نه بېرته راګرځول؛ ۳) بندول، جارباسل؛ ٤) اوېدل، تاورل.

**جارباسل** (jārbāsә́l) مص.مت. ۱) و.ګ. جار ایستل؛ ۲) ترل، په سر کول، راخرخول؛ ۳) پښېمانه کول.

**جارچي** (jārčí) ص.نر.م. ۱) ډنډورچي، نغاره چي، نغاره کوونکی؛ ۲) مجازاً هغه څوک چې راز نه شي ساتلای او افشا کوي.

**جارغالی** (jārğāláy) نر.م. ۱) نغری، جارغلی، هغه نغری چې په کوټې کې جوړ شوی وي؛ ۲) کنداري، ورکوټی پټی، کوره کی.

**جارغلی** (jārğaláy) نر.م. نغری.

**جارکړونی** (jārkṛúnay) نر.م. ۱) جارکوونکی، اوبدونکی؛ ۲) هغه څوک چې چرګه په هګیو کښېښوي او ددې کار په بدل کې د یوې نیمایي شوی هګۍ اخلي.

**جارکېده** (jārkedá) نر.ج. ځارېده، قربانېده، صدقه کېده، جارېده.

**جارګنی** (jārganáy) ښځ.م. کوټه، د خوشایو لرګیو او څپیاکو د اېښودلو ځای.

**جارګنی** (jārganáy) نر.م. هغه ځای چې په لرګیو راایسار شوي وي، شپول، د ښپې له خوا د غاروېو پنډغالی.

**جارو** (jārú) نر.م. (ج. جاروګان) جاروب، ربېږ، ربېز، بوهارۍ، کاټنه.

**جارواته** (jārwātá) نر.ج. ۱) پښېمانه کېده؛ ۲) بېرته ګرځېده.

**جاروتل** (jārwatә́l) مص.ل. ۱) پښېمانه کېدل، بېرته ګرځېدل، وعده خلافه کېدل؛ ۲) تلل، راګرځېدل، راستنېدل.

**جاروکښ** (jārūkáṣ) ص.نر.م. جارو کوونکی، جارو وهونکی، جارو سره د ځای پاکوونکی.

**جاروکول** (jārūkawә́l) مص.مت. ۱) کاټنه کول، جارو سره د ځای پاکول، ربېز کول، ربېږ کول؛ ۲) له منځه وړل، پوپنا کول.

**جاروګی** (jārūgáy) ښځ.م. (ج. جاروګیانې) وړه جارو، وروکې جارو، ربېزګی، ربېښه.

**جارول** (jārawә́l) مص.مت. ۱) ځارول، قربانول؛ ۲) تنسته غورول؛ ۳) جاروکول، پاکول، صفا کول، پېجوړل، پوکول.

**جارونه** (jārawә́na) ښځ.م. ۱) تنسته غورونه؛ ۲) ځارونه، قربانونه، صدقه کونه.

**جاري** (jārí) ص.نب. ۱) روان، بهاند، بهېدونکی؛ ۲) همېشه، تل؛ ۳) قرباني، د ځارېدو؛ ۴) یو دول ترکي خط دی.

**جارېدل** (jāredә́l) مص.مت ۱) ځارېدل، قربانېدل ۲) تنسته غوړول کېدل

**جاري کول** (jārikawə́l) مص. مت. ۱) روانول، بهول؛ ۲) نافذول؛ ۳) پېل کول.

**جاړ** (jā́ṛ) نر.م. ۱) جلاب؛ ۲) دازغنو ونو او بوټو ځنګل ته ویل کېږي نه د غټو ونو ځنګل ته.

**جاړبوټی** (jāṛbū́ṭay) نر.م. د جلابو بوټی، هغه بوټی چې په جلابو کې استعمالېږي.

**جاړجاخی** (jāṛjā́xay) ص. نر.م. جاخه، یو په بل کې ننبتی، سره ښخ.

**جاړوله** (jāṛwə́la) ښځ.م. په جلابو کې پکارېدونکی بوټی.

**جاړه** (jāṛá) ښځ.م. (ج. جاړې) یو اغزن بوټی دی.

**جاز** (jā́z) نر.م. مو. د جاز موسیقي، د جاز ګډا، د نڅا داسې موسیقي چې له ښوره سره مله وي.

**جاسوس** (jāsū́s) ص. نر.م. مخبر، خبر رسوونکی، خبر وړونکی، پټ حال لټوونکی، ریوټچي

**جاغه** (jāğá) ښځ.م. د کمیس غاړه، ګرېوان.

**جاکټ** (jākáṭ) نر.م. (ج. جاکټونه) ۱) نیم تنه یي جمپر؛ ۲) بنیان.

**جاکړ** (jākáṛ) نر.م. جکړ، بادوباران، ځول، هغه باران چې سخت باد او سېلۍ ورسره وي.

**جاکی** (jākáy) نر.م. (ج. جاکي) یخ شوی، مسوره شوی، ترمنه شوی، مایه شوی، پرن شوی.

**جاګنی** (jāganáy) نر.م. نوی، هغه غوايي چې په غوبله کې ځای په ځای مړوي ته جوخت ولاړ وي او نور غوایان وریاندې راتاوېږي.

**جاګیر** (jāgī́r) نر.م. هغه سیمه یا ځمکه چې د یوې سیمې د واکمن له خوا چاته د هغه د خدمت یا معاش په مقابل کې ورکول کېږي.

**جاګیردار** (jāgīrdā́r) نر.م. (ج. جاګیرداران) د جاګیر خاوند، د ځمکو خاوند، هغه چاته چې جاګیر ورکړی شوی وي.

**جال** (jā́l) نر.م. ۱) تور؛ ۲) دود، دستور؛ ۳) مکر و فریب، ټګي؛ ٤) دام، لومه.

**جالګی** (jālgáy) نر.م. (ج. جالګي) ۱) وړوکی جال، جالګوټی؛ ۲) د غني ځاله؛ ۳) د نغري په څنګ کې د خوشیو اېښودلو ځای.

**جالګی** (jālgáy) ښځ.م. ۱) هغه جالي چې کړکۍ ته د ماشو د مخنیوي لپاره لګول کېږي؛ ۲) د ښځو په بوقره کې جالي.

**جالوغ** (jālúğ) نر.م. جابغ، د آس د زین لاندې هغه لمځی چې د خولو لپاره وي.

**جالول** (jālawə́l) مص. مت. رواجول، دودول.

**جاله** (jālá) ښځ.م. (ج. جالې) ۱) ځاله، بنځولی؛ ۲) د جولاګي ځاله؛ ۳) له سیند څخه د پورېوتو یوه وسیله چې له څو ګانو څخه جوړه شوې وي؛ ٤) سپینه پرده چې په سترګه کې پیدا کېږي ۵) پوله؛ ٦) نیستي، غریبي، خواري.

**جاله وان** (jālawā́n) نر.م. ۱) د جالې چلوونکی؛ ۲) د جالې خاوند، د کښتۍ خاوند.

**جالی** (jāláy) ښځ.م. ۱) جوړی، شرومبی، شنه اوبړی چې په ډنډ او ولاړو اوبو کې پیدا کېږي؛ ۲) د اوسپنې، پلاستیک او... څخه جوړه شوې سوری سوری پرده.

**جالېدل** (jāledə́l) مص. ل. مشهورېدل، رواجېدل، دود کېدل.

**جام** (jā́m) نر.م. (ج. جامونه) ۱) کټوری، پیاله، کاسې ته ورته لوښی؛ ۲) د غور په ولایت کې د یوه تاریخي ځای نوم دی.

**جامباز** (jāmbā́z) نر.م. ۱) مست اوبښ، ناباري اوبښ، سرکښ اوبښ؛ ۲) د خپلې خوښې خاوند، ناارامه، سرټنبه، سرټمبه.

**جامبره** (jāmbə́ra) ښځ.م. ...

**جامبره** (jāmbṛá) ښـځ.م. (ج. جامبـرې) جـاره، جاځه، هغه ونې او بوټي چې څانگې يې يو په بل کې سره نښتي وي.

**جامد** (jāmíd) ص. نـر.م. ۱) ټينـگ، کلک شی؛ ۲) هغه کليـمه چې بله کليـمه تري اشـتقاق نه شي موندلای.

**جام جم** (jāmijám) نـر.م. د داسـتانو لـه مخې د جمشيد پاچا هغه پياله چې دنړۍ نقشه په کـې ايستل شوې وه.

**جامع** (jāmiع) ص. نب. ۱) يو ځـای کـوونکی؛ ۲) مکمل، پوره، رانغاړونکی؛ ۳) لوی جومات چې دجمعې او اختر لمـونځـونه پکې کـېږي؛ ٤) مجمـوعـه، هغه جونگ چې قانوني مقررات په کې راغونډ شوي وي؛ ٥) دحضرت محمد (ص) د احاديثو مجموعه؛ ٦) د الله (ج) يو نوم.

**جامع الحروف** (jāmiعulhurúf) نر.م. ج. بد. هغه صنعت ته وايي چې په يوه شـعر کې د هـجا ټول حروف راوړل شي.

**جامع اللغات** (jāmiعullug̣át) نـر.م. د ژبـې هغه قاموس چې د هر لـغت مـانا په ډېر تفصيل سره په کې څېـړل شوې وي.

**جامعه** (jāmiعá) ښـځ.م. ۱) ټولنه، سوسـايټي؛ ۲) پوهنتون، يونيورسـټي، دارالعلوم.

**جامکی** (jāmakáy) نر.م. لنډ پتلون.

**جامگی** (jāmgáy) نر.م. ورکـوټی جام، کوچنی جام، جام گسکی، جام گنکی، جاموکی.

**جامن** (jāmán) نـر.م. ۱) د يوې ونې نوم دی چې د مېـوې رنگ يې د عـود رنـگ غـونـدې دی؛ ۲) جابې، کبو، جامنو، هغه کميس چې نڅاگر يې د نڅا په وخت کې اغوندي.

**جامه** (jáma) ښځ.م. ۱) ازامه، ژامه؛ ۲) کالي، لباس.

**جان** (jān) نـر.م. ۱) ځـان؛ ۲) ډېر خـوږ، گـران؛ ۲) دمينې کليمه.

**جانان** (jānā́n) نر.م. ۱) جان، محبوب، معشوق؛ ۲) معشوقه؛ ۳) عجيب، حيرانوونکی.

**جانب** (jāníb) نـر.م. (ج. جانبونه) څنگ، طـرف، لوری، اړخ، خوا، ډډه، پلو.

**جانباز** (jānbā́z) ص. نر.م (ج. جانبازان) مېړنی، زورور، بهادر، سرتېری.

**جانبدار** (jānibdā́r) ص. نر.م. ملگری، پلوي، په ننگه، پرخوا، مددگار، په پلو، په خوا.

**جانبين** (jānibáyn) نر.ج. دواړه خواوې، دوه جانبه، دوه اړخه، دواړه پلوه، دوه طرفه.

**جان جان** (jānjā́n) نـر.م. ۱) زارۍ، چاته عذر او زارۍ کـونه، جـگې جـگې؛ ۲) ص. د زيـاتې مينـې لـه امله چاته ويل کـېږي.

**جانجو** (jānjó) ص. نر.م. سست، ناړامه، ناراسته، جانجی؛ ۲) مجذوب، لېونی.

**جانجو پانجو** (jānjo pānjó) ص. نر.م. سست پست، بېکاره، بې ښې، بې ښمرې.

**جانجي** (jānjí) ص. نر.م. ۱) وراباتی، دروغې، په وراتللی، واده ته بلل شوی؛ ۲) چغچې، چغزې مغز لرونکی؛ ۳) نرم، کاغذي، ژر ماتېدونکی.

**جانجيتوب** (jānjitób) نـر.م. ۱) ســستي، ناراسـتي؛ ۲) په وراکې شـاملېدنه، وراباتي کېدنه، وروځې کېدنه.

**جانجېدل** (jānjedál) مص. ل. سستېدل، لټ کېدل، ناراسته کېدل.

**جانخاني** (jānxāní) نر.م. کمبو، ترنگې، "سوډ" کوری، د بوسو د وړلو هغه وسيله.

**جاندار** (jāndā́r) ص. نـر.م. ۱) ذيروح، سـاکښ؛ ۲) [illegible]

**جاندم** (jāndám) نر.م. دوزخ، جهنم.

**جانشین** (jānešín) نر.م. عوضي، قایم مقام، ځای ناستی، د بل چا په ځای ناست.

**جانکټی** (jānkaṭáy) نر.م. (ج. جانکټیان) ۱) جان نثار؛ ۲) دهندبخاني ملازم؛ ۳) د غرغري د تختې کښېوونکی.

**جان نثاري** (jānnisārí) ښځ.م. قرباني، له ځانه تېرېدنه، مېړانه، زړورتوب.

**جان گداز** (jāngodā́z) ص.نر.م. ځان خوړونکی، ځان ویلي کوونکی.

**جاوجی** (jāwjā́y) ښځ.م. د کمیس لمن، د ښادر (لوپټې) یا بل کالي غاړه یا څنډې.

**جاور** (jāwā́r) نر.م. یو ډول بوټی دی.

**جاوسا** (jāwsā́) ښځ.م. بېخـل، گـرونج، د منگي اېښودلو لرگين یا اوسپنیز ځای.

**جاوو** (jāwū́) نر.م. یو ډول تریو خوندی بوټی.

**جاه طلبي** (jāhtalabí) ښځ.م. عـزت غوښتنه، ځان ته د غتوالي او لويي غوښتنه.

**جاهل** (jāhíl) ص. نر.م. ناپوه، بې عقل، بې علمه.

**جاهلیت** (jāhilyát) نر.م. ۱) ناپوهي، ناداني، بې علمي؛ ۲) د مسیح علیه السلام له رحلت نه د محمد(ص) تر ظهور پورې د جزیرة العرب د تاریخ یوه دوره؛ ۳) سرتمبگي، ناړامي.

**جاه و جلال** (jāhujalā́l) نر.م. شان او شوکت، دبدبه، رعب.

**جای بند** (jāybánd) ص. نر.م. ځای پر ځای ولاړ، - جای بند آس.

**جایداد** (jāydā́d) نر.م. ۱) ملکیت، مال، شمکه؛ ۲) گنجایش، ځایېدنه.

**جایز** (jāyíz) نر.م. ۱) مناسب، صحیح؛ ۲) روا، د شرعي او قانون مطابق؛ ۳) اصلي، ثقه؛ ۴) مستند؛ ۵) د منلو او منظورېدو وړ.

**جایزه** (jāyzá) ښځ.م. ۱) انعام، گټنه؛ ۲) التون، پرتال، جاج؛ ۳) حاضري، شمار؛ ٤) اندازه او معلومات کونه.

**جایفل** (jāyfál) نر.م. د یوې ونې میوه ده

**جباټی** (jubāṭáy) نر.م. څادر، جبته، جیبته.

**جبار** (jabā́r) ص. نر.م. ۱) زورور، غبتلی، جبر کوونکی؛ ۲) د خدای(ج) یو صفت دی.

**جبازه** (jabāzá) ښځ.م. جرباجر، له واورې او باران سره یو ځای ورېدل.

**جب جبو** (jabjabú) نر.م. یو ډول بوټی دی چې په جبو او جبه زارو کې شین کېږي.

**جبر** (jábar) نر.م. ۱) زور، ظلم، زیاتي؛ ۲) ري. الجبر، جبر و مقابله؛ ۳) فل. برخلیک، تقدیر.

**جبراً** (jabrán) ص. نر.م. په زور، په ظلم، په زیاتي.

**جبران** (jabrā́n) نر.م. تلافي کونه، د تاوان تلافي.

**جبرانول** (jibrānawál) مص. مت. ۱) تاوان ورکول؛ ۲) مرسته کول؛ ۳) تلافي کول.

**جبرلوټ** (jabrlóṭ) نر.م. کونځی ټوپک، ماتوونی ټوپک، ماتېدونکي ټوپک، سرپي ټوپک.

**جبروت** (jabarū́t) نر.م. لویوالی، لويي، سترتوب، د خدای کبریایي صفت.

**جبری** (jabráy) نر.م. گالس، کشک، گېټس، هغه تسمې چې پتلون وربانديې ټينگېږي.

**جبري** (jabrí) ص. نب. په جبر، په زور، په ظلم.

**جبری** (jabrā́y) ښځ.م. لویې جرابې، هغه جرابې چې تر زنگنو پورې وي.

**جبړک** (jabaṛák) نر.م. ۱) وروږمه؛ ۲) د کوچنیانو د لوبو شی.

**جبل** (jabál) نر.م. د اوسپنې اوږدې میلې چې د تیږو اړولو او راویستلو لپاره کارېږي.

**جبوري** (jabūṛáy) ص. نر.م. ۱) ناراسته، تمبل؛ ۲) بې شرمه، تیټ سترګی، بې غیرته.

**جبون** [1] (jubún) نر.م. ۱) ژبه؛ ۲) وېرندوکی؛ ۳) د وهل له کلیمې سره د سخت دار مفهوم ورکوي.

**جبون** [2] (jabún) نر.م. ۱) تربوزک، مول، اوربوزی تینبوزکه؛ ۲) ص. نر.م. ژبه ور.

**جبه** [1] (jabá) ښځ.م. ۱) وګ. ژبه؛ ۲) جبه زار؛ ۳) هغه لوښي چې د ګانې تېل په کې تولېږي.

**جبه** [2] (jubá) ښځ.م. (ج. جبې) شوقه، شقه، یو ډول چپنه ده چې اوږده لستوڼي لري.

**جبه جبان** (jabajabā́n) نر.م. ۱) خبرې اترې؛ ۲) لوز، قول، عهد، ژبه.

**جبه خور** (jabaxwár) نر.م. تاندوبه، جبجوب شمکه، لنده خیشته شمکه.

**جبه زار** (jabazā́r) نر.م. جبه، هغه شمکه چې له څانه اوبه په کې پیدا کېږي.

**جبهه** (jabhá) ښځ.م. (ج. جبهې) ۱) ډله، دسته، جماعت؛ ۲) د جګړې د میدان مخنۍ برخه؛ ۳) تندی؛ ٤) د سپوږمۍ د یوه منزل نوم.

**جبی** (jabáy) ښځ.م. ۱) ژبی، زبس، د کوچنیانو د تالو پربوتلو ناروغي؛ ۲) یو اغزن سور ګلی بوټی دی.

**جبین** (jabín) نر.م. تنده، وچولی، تندی.

**جپ** (jap) نر.م. وظیفه، ذکر، عبادت.

**جپالی** (japālay) نر.م. وبا، کوالرا، مرګو.

**جپامرګو** (japāmargó) ښځ.م. دوبا ناروغي.

**جپتال** (japtā́l) نر.م. مو. له لسو ماترو څخه جوړ د یوه تال نوم دی چې یو خالي او درې ضربه لري.

**جپر** (japár) نر.م. بېکاره اسباب، عبث او بېکاره څیزونه، لکه زوړ او تلي اسباب او سامان.

**جت** (jat) نر.م. ۱) ډول، قیافه، بڼه؛ ۲) جوړه، جفت؛ ۳) ناپوه؛ ٤) ساروان، اوښبون، اوښبه.

**جت بولي** (jatbolí) ښځ.م. جت بولي، بې شرمي، بې حیایي، سپکه وضعه او سپکه خوله.

**جتیي** (jatayí) ص. نر.م. خسک چرګ.

**جته** (jatá) ښځ.م. جتی، ډله، توله، غونډه.

**جتي ستي** (jatisatí) ص. نب. ۱) لوند، مجرد؛ ۲) بې پروا؛ ۳) بد خرڅه، خرخو، مُسرف.

**جټ** [1] (jaṭ) نر.م. (ج. جټان) ۱) جټ، جاټ، جپسي، رومانیز، د یو تېر نوم، د راجپوتانو یوه څانګه؛ ۲) ص. ناپوه، جاهل؛ ۳) کم ذاته، کم اصله.

**جټ** [2] (jiṭ) نر.م. ۱) فواره، داره؛ ۲) نوزل، هغه سوری چې غاز یا مایع په فشار سره د باندې څخه راوځي.

**جټ پول** (jaṭpól) نر.م. د ښځو مکر و فریب.

**جټتوب** (jaṭṭób) نر.م. ۱) جټوالی؛ ۲) ناپوهي.

**جټ ستریم** (jaṭstrím) نر.م. هو. تند باد.

**جټ کانه** (jaṭkā́na) ص. ښځ.م. ۱) معمولي، اسان؛ ۲) بې قاعدې.

**جټکه** (jaṭká) ښځ.م. وګ. جیتکه.

**جثه** (jusá) ښځ.م. (ج. جثې) څېره، قواره، مخ، شکل، تن، بدن، صورت.

**جج** (jaj) نر.م. ۱) دزنې کوغالي، دزنې کوتی، د زنې تنوتې برخه؛ ۲) دزنې لاندې غوښه.

**ججکی** (jajkáy) نر.م. وګ. چچه.

**ججلداغ** (jijaldā́ğ) نر.م. چرچرانکی، دم، توز، یو ملخ دوله ساکښ دی.

**ججوره** (jajúra) ښځ.م. ۱) ججوره، جاغور؛ ۲) حوصله؛ ۳) پرسېدلی او رمېږ؛ ٤) د توریک جاغور یا ججوره.

**ججوی** (jajóy) نـر.م. د لاله گل، د خـاتـول گل، شندي گل، یو ډول سارانی گل دی.

**ججه** (jajá) ښځ.م. (ج.ججې) ۱) تلنگ؛ ۲) ټاټ؛ ۳) جزیه.

**ججی** (jijáy) نر.م. یو ډول حـلال مارغه دی، نر یې اوږده لکۍ او ښایسته ښکې لري.

**جحیم** (jahím) نر.م. دوزخ، جهنم.

**جخ** (j(u,o)x) نـر.م. ۱) د اوبـو مـخ؛ ۲) ځگ؛ ۳) پرپوکی، پوکنۍ حباب.

**جخت** (joxt) ق. ۱) پیوست، جوړه، ښنگ په ښنگ ۲) ټیک، صحیح.

**جختوالی** (joxtwāláy) نر.م ۱) پیوستوالی، جوړه توب؛ ۲) ټیکوالی، سموالی.

**جختول** (joxtawə́l) مص.مت.جوړه کول، برابرول سره ښنگ په ښنگ کول.

**جخته** (joxtá) ښځ.م. ځخته، ښښته، یو ډول غرنی بوټی دی.

**جختېدل** (joxtedə́l) مـص.ل. پیـوست کـېدل، جوړښتېدل، یو ځای کېدل، پیوستېدل.

**جد** (jad) نر.م. (ج. اجداد) نیکه، د پلار پلار، د مور پلار، لوی نیکه.

**جدا** (jodā́) ق. گوښې، جلا، بېل، یوازې، ځانله.

**جداً** (jiddán) ق. په جدیت سره، په کلکه سره.

**جدار** (jidā́r) نر.م. دېوال،.

**جدال** (jidā́l) نر.م. جگړه،دښمني، لانجه.

**جدایي** (jodāyí) ښځ.م. ۱) بېلتون، فراق، هجران ۲) لرېوالی، بېلوالی، گوښیتوب

**جدر** (jadár) نر.م. بنسټ،تنه، اساس، آر، جرړه.

**جدل** (jadál) نـر.م. ۱) نزاع، مخالفت، دښمني، لج؛ ۲) شور، کړس، بحث، جنگ، جگړه.

**جدوار** (jadwār) نر.م. ....

**جد و جهد** (jidujáhd) نر.م. هڅه،هلې ځلې،هاند.

**جدور** (jadū́r) نـر.م. د کـوچنیانو د ژیـې (کنکې ژبې) د پورته کولو درمل یا دوا.

**جدول** (jadwál) نر.م. لسټ، لېست، فهرست.

**جدي** (jedí) ص.نب. ۱) فعال، تکړه؛ ۲) د حقیقت له مخې؛ ۳) په جدیت؛ ٤) ښځ.م. مـرغـومی؛ ٥) د مـرغـومي میاشـت؛ ٦) قطبي ستوری؛ ٧) جغ. د شمکې د یوې فـرضي کرښه ده.

**جدیت** (jidiyát) نر.م. ۱) فعالیت، کوښښ، تکړه والی، تکړه توب؛ ۲) تېزوالی، تېزي.

**جدید** (jadíd) ص.نر.م. ۱) نوی، تازه؛ ۲) اوسنی؛ ۳) د دې وخت، عصري.

**جذاب** (jazā́b) ص.نـر. م.ج. ۱) راښکـونکی، جذبوونکی؛ ۲) په زړه پورې، زړه راښکونکی.

**جذام** (jazā́m) نر.م. وگ. پرنگ[۲].

**جذب** (jazb) نر.م ۱) اثر، کشش، کښنونه، راکښنه؛ ۲) جوش، د بېخودۍ هغه ډول کیفیت چې اهل الله ته وربښېږي.

**جذبات** (jazabā́t) نر.م. (د جذبې جمع) احساسات د زړه او ذهن د جوش کیفیت.

**جذبول** (jazbawə́l) مـص. مـت. ۱) راکښـول، راجلبول، راکښل؛ ۲) ځان ته راښکل.

**جذبه** (jazbá) ښځ.م. احساس، داحساساتو پـاړېدنه جوش.

**جذر** (jázar) نـر.م. ۱) اصل، رېښه، جـرړه، ولې؛ ۲) (ري.) هغه عدد چې په خپل ځان کې ضرب کړی شي؛ ۳) طب. هغه برخه چې له جـذع ځخه جلا کېږي.

**جر** (jar) نر.م. ۱) ویاله، لښتی، زاکښ؛ ۲) ص.نر. م. پاتې، پړ، مغلوب؛ ۳) گړوږ؛ ٥) په گـرامر کې د یوې کلیمې غیر اصلي حالت

**جرابه** (j(a,u)rāba) ښځ.م. (ج. جـرابې) جرابه، جورابه؛ د پښو اغوستلو کالي.

**جرأت** (jurát) نر.م. ١) زړورتيا؛ ٢) بې پروايي.

**جراثيم** (jarāsím) نـر.ج. ١) اصـل، ريښه؛ ٢) د ريښي چاپېره خاوري؛ ٣) د مېـږي کـور؛ ٤) و.ګ. مکروب.

**جراح** (jarāh) فـا. نر.م. سـرجن، ځيـرونکی، هغه ډاکټر چې عمليات کوي.

**جراحت** (jarāhát) نر.م. ټپ، زخم، پرهر، پرهار.

**جراحي** (jarāhí) ښځ.م. جـر. عمليات، اپريشن، طبي عمليات، سرجري.

**جرار** (jarấr) ص. نر.م. ١) ژبغراند، ژبور، چالاکه؛ ٢) زړور، تکړه؛ ٣) په جنګ کې ماهر.

**جراسک** (jarāsák) نـر.م. چرچرک، کيرړی، يو ډول حشره ده.

**جرايل** (jarāyə́l) نر.م. ارت خولي غربين، يـو ډول پخوانی ټوپک دی چې ارته خوله لري.

**جرب** (jarb) نر.م. پم، درب، خارښت، د ځان ګرولو يو ډول جلدي ناروغي ده.

**جرپی** (jarpáy) ص. نر.م. ګرټن، باټو.

**جرثقيل** (jarsaqíl) نر.م. پالوان، کرېن.

**جرجر** (jarjár) نر.م. هر هر، خره ته د جنسي تحريک اواز.

**جرجور** (jarjúr) نـر.م. خـروبی، جـور جور، جور جوری، شرشره، جرجوری.

**جرجير** (jarjír) نر.م. تراتېزک، يو ډول سابه دي.

**جرح** (jarh) ښځ.م. ١) جـرحه، پرهـار، زخـم، ټپ؛ ٢) د ګوا شهادت باطلول.

**جرړه** (jaṛa) ښځ.م. ولي، ولې، بېخ، بنياد، ريښه، سيه، رده، اساس، د يوه شي اصل.

**جرړی** (jaṛáy) ښځ.م. يو ډول خړرنګي چنچنه.

**جرس** (jarás) نر.م. ١) ګونګری، ګينګری، غړاو، زنګوله، غبره، جرنګانی؛ ٢) د مروتو د کسرونو د جوړولو يو شاعر.

**جرعه** (jorʼá) ښځ.م. غرپ، ګوټ، غورپ.

**جرغاتکه** (jərğātə́ka) ښځ.م. يوه مرغۍ ده.

**جرقه** (jaraqá) ښځ.م. ١) لمبه، سپرغی، بڅری، د اور بڅري، د برېښنا پړک؛ ٢) جرک.

**جرکانی** (jarkā́nay) نر.م. چونګې، ګټه، پېسې کې له اصلي ګټې زيات څه اخيسته.

**جرکېدل** (jarkedə́l) مصـ. ل. ١) ګـوږ کېدل، انجړېدل، جـړېدل؛ ٢) مغلوبېدل، ماتېدل؛ ٣) نيول او لاس پرې اېښودل.

**جرګاوو** (jərgāwú) ص. نر.م. مرکچي، مرکزن، د مرکې سړی، جرګه مار.

**جرګتو** (jərgatú) نر.م. ١) جرګـتو، د جرګې مشر، د مرکې مشر؛ ٢) ص. نر.م. غونډه کوونکي، مجلسي، مرکچي.

**جرګه** (jərgá) ښځ.م. (ج. جرګې) ١) غونډه، ولسي مجلس، ټولی، د مشورې مجلس، قومي غونډه؛ ٢) ننواتې، مرکه؛ ٣) سلا، مصلحت.

**جرګه ګی** (jərgagáy) ښځ.م. وړه جرګه، فرعي جرګه، کوميټه، کميسيون.

**جرګه وال** (jərgawā́l) نر.م. د جـرګې غـړی؛ په جرګه کې برخوال.

**جرلګ** (jarlág) نر.م. ځلرګ، ځلرګه، خـړرنګی اغزی دی.

**جرم**(١) (jorm) نر.م. ١) تېروتنه؛ ٢) ګناه، جنايت.

**جرم**(٢) (jirm) نر.م. ١) جسم، کتله - اسماني اجرام، ستوري؛ ٢) مکروب؛ ٣) جنين؛ ٤) ريښه.

**جرمانه** (jarmānā́) ښځ.م. (ج. جرمانې) ناغه، جريمه، تاوان، مالي سزا، باځه،

**جرم پېژندنه** (jormpežandána) ښ‌غ‌م. د جرم علمي څېړنه، کريمينالوجي، کريمينولوژي.

**جرم کار** (jorəmkár) نر‌م. گناهکار، مجرم.

**جرموره** (jarmorá) ښ‌غ‌م. غونډاري، موره، هغه پارسوب چې د حشري د چيچلو په سبب په پوستکي باندې پيدا کېږي.

**جرنگانی** (jrangānáy) نر‌م. زنگ، تنگ تنگی.

**جرنگاوو** (jrangāwú) نر‌م. شرنگاوو، جرنگاوو.

**جرنگول** (jrangawə́l) مص. مت. شرنگول، شرنگول، جرنگول.

**جرنيل** (jarnáyl) نر‌م. (ج. جرنيلان) ۱) جنرال، جنربل، د پوځ لوی افسر؛ ۲) مغرور، مشروټ.

**جره** (۱) (jará) ص. نر‌م. (ج. جره گان) ۱) مجرد، لوند؛ ۲) يوازې، گوښی، تنها.

**جره** (۲) (jurə́) نر‌م. (ج. جره گان) يو ډول بابنه.

**جره توب** (jaratób) نر‌م. بې ښځې توب، لوند توب؛ جره والی، يوازېتوب.

**جري** (jarí) ص. نب ۱) تغيير خوړونکی، اوښتونکی؛ ۲) په گرامر کې اوښتی يا تغيير خوړلی شکل.

**جری** (jaráy) ښ‌غ‌م. لښتی لښتی، شبلي شبلي.

**جريان** (j(a,i)r yā́n) نر‌م ۱) تگ، بهېدا، روانېدنه؛ ۲) حزبي ډله؛ ۳) جاري کېدنه؛ ٤) د بربښنا چلېدنه؛ ٥) ادامه، جاري، روان.

**جريب** (j(a,i)rib) نر‌م. د ځمکې د اندازه کولو يو واحد دی؛ د دوه زره مربع مترو مساحت.

**جريب کښ** (jəribkáṣ) نر‌م. (ج. جريب کښان) جريب کوونکی، جريبگر، مساح، هغه څوک چې ځمکه جريبوي (اندازه کوي).

**جريبن** (jəribán) نر‌م. جريبن، يو ډول گل دی.

**جريبول** (jaribawə́l) مص. مت. جريب کول، جريبکې کول جريبونه.

**جريده** (jaridá) ښ‌غ‌م. ۱) څاخ، څانگه، منده، خونگ؛ ۲) يادگار؛ ۳) ژورنال، مجله، اخبار، مهالنۍ، خپرونه.

**جريز** (jaríz) نر‌م. شيره، اتوب، گرېی، اروب.

**جريمه** (jarimá) ښ‌غ‌م (ج. جريمې) تاغه، جرمانه، بانده، تاوان، مالي سزا.

**جړ** (jaṛ) نر‌م ۱) جړه، ريښه؛ ۲) ص. نر‌م. تاوراتاو گډوډ؛ ۳) نر‌م. ج. زهر.

**جړامبو** (jaṛāmbú) ص. نب. ۱) تمبل، ستومانه؛ ۲) هغه کالي چې پر چا لوی او ارت وي.

**جړانگو** (jaṛāngú) نر‌م. فلوس، پلوس، د يوه طبي بوټي نوم دي.

**جړاو** (jaṛáw) ص. نب. پسوللی، سينگار، په گانه سنبال، گاڼلی.

**جړاوول** (jaṛāwawə́l) مص. مت. په ښکلو غميو ښکلي، په جواهراتو ښکلل.

**جړاوه** (jaṛāwá) ښ‌غ‌م. (ج. جړاوې) په غميو او جواهرو ښکلي شوي کالي.

**جړاوېدل** (jaṛāwedə́l) مص. ل. په غميو باندې ښکلي کېدل، په جواهرو ښايسته کېدل.

**جړبړ** (jaṛbáṛ) نر‌م. جلاب، جولاب، جولاپ.

**جړپړ** (jaṛpáṛ) ص. نر‌م. په يو بل کې ننبتی، په يو بل کې ننوتی، انجرينجر، گډوډ، پېچلی.

**جړپن** (jṛapán) ص. نر‌م. اېلتي ويونکی، ډتن.

**جړپول** (jṛapawə́l) مص. مت. ۱) ډتول، چتي غړوول؛ ۲) په لوښي کې د مايعاتو ښوررول.

**جړپېدل** (jṛapedə́l) مص. ل. چتي غړېدل، کړتېدل، کړپېدل، اېلتي ويل.

**جړجړ** (jaṛjaṛ) نر‌م. ۱) د اوبو د راتوېدلو اواز؛ ۲) چتي، پوچ، بې مانا، عبث، فضول.

**جړجړی** (jaṛjaráy) نر‌م. جړوبي، ځړوبي، شرشره.

**چارک** (čārák) نر.م. څلور پاوه، څلورمه برخه، ربع

**چارکی** (čārakáy) نر.م. يو چارک (کانی).

**چارګر** (čārgár) فا.نر.م. کارکوونکی، کارګر.

**چارګل** (čārgwál) نر.م. تيک، دبنځو هغه ښسول چې په پزه کېږي.

**چارګلی** (čārgwaláy) نر.م. تويی ګل، ترخی، يو ډول بوټی دی چې ژېړ ګلان کوي.

**چارګنده** (čārgandá) ښځ.م. چارند، چاری، د خيمې چارچاپېره کېندل شوی ځای.

**چارګی** (čārgáy) نر.م. يو ډول بوټی دی.

**چارلنډی** (čārlandáy) ښځ.ج. ملنډې، ښنډی، ريشخند، پېيخندل، پېشاړي.

**چارليار** (čārlyār) نر.م. کارروزګار، چاره، کار.

**چارمغز** (čārmáǧz) نر.م. اکوړ، متک، غوزک.

**چارمن** (čārmán) ا. کارمند، کارندوی (فعال).

**چارمېخ** (čārméx) نر.م. ۱) د ښاروبو يو ډول ناروغي ده؛ ۲) تر خولې ډک؛ ۳) هغه څوک چې په څلور اندامه او په څلور مېخو (موږي) تړل شوی وي.

**چارناچار** (čārnāčār) ق. اړومرو، خامخا، د مجبوريت له مخې، په ناکامۍ، مجبوراً.

**چارند** (čāránd) نر.م. وګ. چارګنده.

**چارندوکی** (čārandūkay) ص.نر.م. زيارکښ، کاريګر، چارو، کوششي.

**چارنوم** (čārnúm) ا. چار ځرګندوونکی نوم، لکه ځنګر، باغوان، چميار.

**چارنی** (čārnáy) نر.م. کسبګر، کسبه.

**چارواکی** (čārwākáy) ا. چارواک، چارواکمن، مقام.

**چاروال** (čārwál) ا. کارنده، کاروال، کارمن.

**چاروالي** (čārwālí) کارندويي، سرګرمي، فعاليت.

**چاروغه** (čāroǧá) ښځ.م. د اوښې څرمنې يو ډول پڼه چې مخ يې له لمڅی څخه جوړ شوی وي.

**چاره** (čārá) ښځ.م. ۱) کار، کړه، کسب، پېښه؛ ۲) وسيله، درک؛ ۲) دوا، علاج؛ ۳) تدبير.

**چاره ګر** (čāragár) ص.نر.م. ۱) کومکي، مرستيال ۲) علاج کونکی، چاره ساز.

**چاری** (čāráy) ښځ.م ۱) بېلچه، کری؛ ۲) چارګنده چارنده؛ ۳) د اوږي هډوکی؛ ٤) د کوچنيانو د لوبوکانی.

**چاري** (čārí) ښځ.م. ۱) نجه، ينګه؛ ۲) څلور غابنی پسه، دوه کلن پسه.

**چاريار** (čāryār) نر.م.د آنحضرت(ص) څلور ياران، خلفای راشده.

**چاري چپر** (čāričapár) نر.م. خرګی خرګی، د کوچنيانو د سپرلی يو راز لوبه ده.

**چارېکاري** (čārekārí) ښځ.م. ۱) هغه بزګر چې په کښت کې څلورمه يا شپږمه برخه اخلي؛ ۲) ص. نب. د چارېکار.

**چاړ** (čāṛ) نر.م. ۱) د پښو جوړولو د چميار قالب؛ ۲) دبرستني استر.

**چاړا** (čāṛā) ص.نر.م. ۱) کونګی؛ ۲) ترتری؛ ۳) ناپوه؛ ٤) بې خولې او بې ژبې.

**چاړاتوب** (čāṛatób) نر.م. ۱) ترتری توب، تورتله توب؛ ۲) ناپوهي، ببړاتوب.

**چاړه** (čāṛá) ښځ.م. چاړو، چړه، چوړه، ستوره، هغه تېغ چې تر چاکو لوی مګر نه راکتېږي.

**چاړه ګر** (čāṛagár) نر.م. چاړه جوړوونکی.

**چاړی** (čāṛáy) ښځ.م. ۱) وګ. چاری؛ ۲) ص. ښځ.م. د چاړا مونث.

**چاښني** (čāšní) نر.م. ۱) ناشتا؛ ۲) څکنه، خواره کتنه؛ ۳) مساله؛ ٤) يوه پنځه ساز.

**چاشي** (čāšáy) نر.م. ښاشي، اتهران، دېرن.

**چاغ** (čāğ) ص.نر.م.ج. ۱) چاق، څورب، شلند؛ ۲) چست، تېز؛ ۳) روغ، رمټ؛ ٤) څېرې، دړې دړې شوی لرګی.

**چاغېدل** (čāğedə́l) مص.ل. ۱) مزی کېدل، څربېدل؛ ۲) څېرې کېدل، ماتېدل.

**چاک** (čāk) نر.م. درز، چاود، درځ، ځاک.

**چاکو** (čākū́) نر.م. (ج. چاکوګان) چاقو، هغه تېغ چې د پرې کولو، مېوو سپینولو او نورو چارو کې کار ترې اخلي.

**چاکي** (čākí) ص.نب. ۱) درزي، چاک لرونکی، چاودلی؛ ۲) شکېدلی؛ ۳) دچاک.

**چاګل** (čāgál) نر.م. ۱) د اوبو کوچنۍ ژی یا مشک؛ ۲) دخرمني یا کرمېچ تیکی؛ ۳) اص. ص. تنبل، کاهل، سست.

**چاګله** (čāgalá) ښځ.م. ۱) مشکوره، مشکوله؛ ۲) ص. ښځ.م. سپاره ښځه، تنبله ښځه.

**چال** (čāl) نر.م. ۱) فریب؛ ۲) تګ، یون؛ ۳) طرز، دول؛ ٤) عادت؛ ٥) سطرنج دانو ته ځانګړی حرکت ورکول؛ ٦) ګرځون؛ ۷) تار، سپنسی؛ ۸) هنر، چالاکي؛ ۹) کنده، کوتی، ژوړ ځای؛ ۱۰) کومی، ګوګ؛ ۱۱) چنی، هغه اس چې سره او سپین وېښتان ولري؛ ۱۲) غوچاني؛ ۱۳) دوغل؛ ۱٤) ځاله؛ ۱٥) زرکه؛ ۱٦) زاغاوی، هیلی ته ورته توره مرغۍ ده؛ ۱۷) درنګ، د مالګې کان.

**چالاک** (čālā́k) ص.نر.م. ۱) مکار، چلباز، تګ؛ ۲) تېز، چابک؛ ۳) هوښیار؛ ٤) فعال، تکړه.

**چالان** (čālā́n) ص.نر.م.ج. ۱) جاري، روان، چالو، فعال؛ ۲) نر.م. ۱) بیجک، د سامان یا رقم رسید؛ ۲) راداري، اجازه نامه؛ ۳) تر تحقیق وروسته محکمې ته د تورن لېږنه.

**چالانول** (čālānawə́l) مص.مت. ۱) چالان کول، لګول، روانول، فعالول؛ ۲) لېږل، تورن محکمې ته استول؛ ۳) بندي کول.

**چالانېدل** (čālānedə́l) مص.ل. ۱) چالان کېدل، د انجن لګول کېدل؛ ۲) د جرم له امله محکمې ته لېږل کېدل.

**چالباز** (čālbā́z) ص.نر.م. تګ، چمباز، چلي.

**چال چلند** (čālčalánd) نر.م. چال چلن، چارچلند، تګ راتګ، سلوک، رويه.

**چال چودي** (čālčodé) ښځ.م. چلبازي، فرېب.

**چالو** (čālū́) ق. روان، چالان، بهاند، جاري.

**چاله** (čālá) ښځ.م ۱) غټه اسپه؛ ۲) طریقه، قاعده، اصول، طرز؛ ۲) ض. چاته.

**چالي** (čālí) ص.نب. چلي، فریبکاره، تګ.

**چامبېل** (čāmbél) نر.م. چامبېلي، چمبېلي، یو دول سپین ګل دی چې ډېر ښه بوی لري.

**چامپ** (čāmp) نر.م. یو ډول خوندور خواره دي.

**چامپه** (čāmpá) ښځ.م. (ج. چامپې) ۱) څپه، موج؛ ۲) د اوږدوالي یو مقیاس؛ ۳) پنجه، چمبه، لاس ورکونه.

**چامته** (čāmtá) ښځ.م. و.ګ. چمته.

**چاڼ** (čān) نر.م. د کلیسا زنګ، د کلیسا تلی.

**چانته** (čāntá) ښځ.م. و.ګ. چمته.

**چانچور** (čānčór) نر.م. کوڼی، د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**چاند ماري** (čāndmārí) ښځ.م. چارماري، د توپک په ګولیو سره د چا وژنه.

**چاندني** (čāndaní) ښځ.م. روجايي، روی پوښ.

**چاندي** (čāndí) ص.نب. ۱) د سپینو زرو؛ ۲) سوپېنه، پاک، خالص؛ ۳) اصلي

**چانډو** (čāndū́) نر.م. یو ډول نشه ده چې افین په اوبو کې پخوي او په چلم کې یې څکوي.

**چانډه** (čāndá) ښځ.م. ۱) قاش، دره، نیلمه؛ ۲) حصه، برخه، خوا؛ ۳) ټوټې ټوټې.

**چانس** (čāns) نر.م. (ج. چانسونه) ۱) تصادف؛ ۲) شانس، موقع؛ ۳) بخت، طالع؛ ٤) چل.

**چانسي** (čānsí) ص. نر.م. ۱) چمباز، چلي؛ ۲) خوشبخته، نیک بخته، طالعمن.

**چاڼ** (čāṇ) ص. نر.م. ج. ۱) ستره، غلبیل شوی، کره شوی؛ ۲) نر.م. چڼوونی؛ ۳) تلاش، غوښتنه؛ ٤) خوښونه، انتخابونه.

**چاڼځی** (čāṇjáy) ا. چاڼتون، پالایشگاه، د تیلو چاڼځی.

**چاڼگر** (čāṇgár) ص. چاڼوونکی، چاڼوال.

**چاڼواله** (čāṇwā́la) ا. چاڼول، چاڼونه، تصفیه.

**چاڼول** (čāṇawə́l) مص. مت. ۱) چاڼ کول، ستره کول، کره کول؛ ۲) غلبېلول، چڼول؛ ۳) غوره کول، انتخابول؛ ٤) نینول، چڼول.

**چاڼه** (čāṇa) ښځ.م. چاڼ، چڼ، وسک، گودره.

**چاڼی** (čāṇáy) نر.م. ۱) ښکرور غویی، ښکر لرونکی غوڅکی؛ ۲) غوڅانی، نرگونگټ.

**چاڼۍ** (čāṇə́y) ښځ.م. چاڼ، چڼ، چڼوونی.

**چاڼېدل** (čāṇedə́l) مص. ل ۱) چاڼ کېدل، چڼېدل، ستره کېدل، پاکېدل؛ ۲) نینېدل.

**چاوجۍ** (čāwjə́y) ښځ.م. جاوجۍ، د جامې څنډه، ژۍ، کناره.

**چاود** (čāwd) نر.م. درز، چاک، چود.

**چاودل** (čāwdə́l) مص. ل. ۱) چودل، درز نه کې راتلل، ترکېدل؛ ۲) انفلاق کول، انفجار کول.

**چاودنه** (čāwdána) ښځ.م. ۱) ترکېدنه، چودنه، درز پکې کېدنه؛ ۲) انفلاق، انفجار.

**چاودول** (čāwdawə́l) مص. مت. ۱) چوول، منفجره کول، الوځول؛ ۲) درز کول.

**چاوده** (čā́wda) ښځ.م. (ج. چاودې) د پښتنې له لامله د لاسو او پښو څرمن یا پوست ترکېدنه.

**چاودی** (čā́wday) نر.م. ۱) چاودلی؛ ۲) درز.

**چاودېدل** (čāwdedə́l) مص. ل. ۱) درز کېدل، ترکېدل؛ ۲) منفجره کېدل، سره چودل.

**چاودینک** (čāwdīnák) ص. نر.م. چاولی، بې حیا، بې شرم، سپین سترگی، چاولی.

**چاول** (čāwə́l) نر.م. ۱) د اوبو موری، د اوبو د هنه؛ ۲) شال، شاقول، شاول.

**چاوله** (čā́wla) ښځ.م. چاول، د اوبو دهنه.

**چاوڼی** (čāwṇáy) ښځ.م. و گ. چوڼی.

**چاوه** (čāwá) ښځ.م. یو ترکیب دی چې په چایو کې گوره او سونډ سره اچوي او ایشوي.

**چای** (čāy) نر. ښځ.م. ج. یو بوټی دی چې پاڼې تر شکولو وروسته وچوي.

**چای خوري** (čāyxorí) ص. نب. ۱) د چای، هغه څه چې په چای چښلو پوري اړه لري؛ ۲) ښځ.م. گیلاس، پیاله د چای خوری کاچوغه.

**چای دمی** (čāydamáy) چاینکه، چاینک.

**چایل** (čāyə́l) نر.م. نقاب، پرده، روی بند.

**چاینک** (čāynák) نر.م. چاینکه، د چای د مولو فلزی لوښی.

**چپ**(۱) (čup) ص. نب. خاموش، غلی، چوپ.

**چپ**(۲) (čap) ق. ۱) بغیر له، بې له؛ ۲) بې لاري، خطا؛ ۳) سپک؛ ٤) مخالف، ضد؛ ٥) کین.

**چپاتی** (čapātáy) نر.م. څپتی، چپاتی، پاستی، گرده، نری سپوره ډوډی.

**چپاته** (čapātá) ښځ.م. کیږی، یو ډول پنې یا موچنې.

**چپاتي** (čapātí) ښځ.م. توکې، مسخرې، ملنډې.

چپ ارخی (čaparxáy) ص. کینپال، کبن‌ارخی.
چپاو (čapáw) نـر.م. (ج. چپاوونه) ۱) چـاپـه، یرغل، ناڅاپه برید؛ ۲) برگ آس، بیورآس.
چپاول (čapāwál) نـر.م. مخکنۍ تولی، د سر تولی، پېشقراول.
چپاوول (čapāwa wál) مص.مت. تالاکـول، لوټول، تالاترغه کول، چورول، یرغل کونه.
چپاوي (čapāwí) ص.نب. ۱) چپـاو کـوونکی، لوټوونکی؛ ۲) د چپاو؛ ۳) تېز، تند، چابک؛ ٤) سرزوري، او سرتنبه.
چپاوېدل (čapāwedál) مـص.ل. لـوټ کـېدل، تاراجېدل، چورکېدل، تالا کېدل، چورېدل.
چپایي (čupāyí) ښځ.م. چوپوالی، خاموشي.
چپتری (čaptráy) ښځ.م. د شفتلو په څېر یو دول شینکی دی.
چپتوب[1] (ču,ptób) نر.م. چوپتیا، چـوپوالی، خاموشي، غلي کېدنه، کراره کراري.
چپتوب[2] (čaptób) نر.م. ۱) مخالفوالی، مخالفت ضدیت؛ ۲) کوږوالی؛ ۳) بې لارېتوب.
چپټ (čapát) ص. نـر.م. ۱) توکمار؛ ۲) کـرتـو؛ ۳) تکره هلک، تندرسته‌سړی؛ ٤) څرګند، چپته؛ ٥) صادق؛ ٦) تباه؛ ۷) اشـر، بسـګر، بلندره، پکره، بګاره، تړ، د اوبود بند د تړلو لپاره اشر.
چپته[1] (čupatá) ښځ.م. چوپته، هغـه لـرګي چې د تیږو په دېوال کې په پسورسره اېښودل کېږي.
چپته[2] (čapatá) ښځ.م. ۱) ګرېندوکې ښځه، کرتنه ښځه؛ ۲) بې مانا او ساده ښځه.
چپچاپ (č(a,u)pčáp) ص.نر.م.ج. خاموش، ارام، غلی، کرار، په پټه خوله.
چپچاپېره (čapčāpéra) ص.نب. چاپېره، شاو خوا، ګرداګرد.

چپ چور (čapčúr) ص. نر.م.ج. ۱) چـرچـور، مات شوی، ذرې ذرې؛ ۲) نر.م. لوټ، تالان.
چپر (čapár) نـر.م. ۱) استازي، پیغـام‌رورونکی؛ ۲) ګرندی تلونکی؛ ۳) څپری، څپر، ځاله.
چپراس (čaprás) نر.م. د وره، کړکۍ او... قلفي تنبلوونکي او خوځوونکې وسیله ده.
چپرغټ (čapargát) ص. نر.م. ۱) څورب، غټ، شلند؛ ۲) نر.م. چاغ سړی، روغ هلک.
چپرکټ (čaparkát) نر.م. عصري کټ دی چې له لرګیو، تختو او اوسپنو څخه جوړېږي.
چپرګی (čapargáy) نر.م (ج. چپرګي) څملاتګه، له وني څخه راپرېکړې وره څانګه.
چپره (čaprá) ښځ.م. (ج. چپرې) د څرمنې د پاکولو او توږلو لوېه آله.
چپری (čaparáy) نر.م. (ج. چپري) ۱) ورکـوټی تالاو؛ ۲) څپر، لـه لښتو څخه جوړ شـوی پلن څپر چې د درمند د میده کـولو لپاره په غوایانو پورې تړل کېږي.
چپړ (čapár) ص.نر.م. ۱) چپلیت، اوار؛ ۲) څورب ساتلی، چاغ، شلند.
چپړاخه (čapráxa) ښځ.م. چـاپېـره، چپلاخه، څپېره، چپړاکه، څپلاخه، څاپېړه، څپېړه.
چپړاسي (čaprāsí) نـر.م. چپـراسی، پیـاده، ملازم، خدمتګار، د ښوونځي پیاده.
چپړتاخ (čapartáx) نر.م. چندرو، چپرېخ، چغی، چیندری د کوچنیانو یو دول لوبه ده.
چپړوس (čaprús) ص.نر.م. غوړه مال، چاپلوس.
چپړي (čaprí) ښځ.م. چیچـره، پیپـرک، پېپه، مانده یا خواره غوښه.
چپړی چپړو (čapraycapró) ښځ.م. لته ښځه، سپاره ښځه.

**چپک** (čapák) ص. نر.م. ج. چپي، کوږ سترګی، بهنګا، چپا، قپا، کنې، چنګر، چغر.

**چُپک** (čupák) نر.م. ۱) باز؛ ۲) د باښې نر.

**چپکتوب** (čapaktób) نر.م. چپکتیا، د سترګو کوږوالی، بهنګوالي.

**چپکو** (čapákú) ص.نب. چپي، کیڼ لاسی، هغه څوک چې په کیڼ لاس زیات کار کوي.

**چپکه** (čapáka) ښځ.م. تپکه، تپی، څپیاکه.

**چپلکه** (čapláka) ښځ.م. (ج. چپلکې) څپلکه، سرپایي، چوستکه، چپاتي، چپاته.

**چپلۍ** (čapláy) ښځ. م. ج. و ګ. څپلۍ.

**چپلیت** (čaplít) ص. نر.م. ج. چپریت، هوار.

**چپلیتول** (čaplitawə́l) مص. مت. چپریتول، اوارول، څخپیتول، چپتول.

**چپنډه** (čapandá) ښځ.م. (ج. چپنډې) تورتی، د لرګي کاسه، د لرګي کنډولی.

**چپنک** (čapanák) نر.م. د ماشومانو چپنه.

**چپنه** (čapána) ښځ.م. (ج. چپنې) چوغه، قبا، شوقه، چپن.

**چپو** (čapú) نر.م. د بېړۍ څپه، د کشتۍ چلولو چپه، د بېړۍ چلولو چپه.

**چپوالی**[1] (čapwā́lay) نر.م. ۱) چپتیا، مخالفت ۲) غلطي، تګي.

**چپوالی**[2] (čupwā́lay) نر.م. خاموشي، چپتیا.

**چپ و چور** (čapočū́r) ص. نر.م. ج. تالا، تالا، ترغه، لوټ شوی، چورشوی.

**چپوښ** (čapūṣ) ص. نر.م. ښانګور، لینګور، اوږد لینګی، د اوږدو لینګیو خاوند.

**چپ و غروپ** (čapoğrúp) ص. نر.م. بالکل خاموش، غلی پلی، ببخي چوپ.

**چپول**[1] (čupawə́l) مص. مت. غلی کول، کرارول.

**چپول**[2] (čapól) ص. نر.م. ۱) چنګر، کوږ سترګی ۲) چوډی، پیډی، کبې.

**چپول**[3] (čapawə́l) مص. مت ۱) مچول، ښکلول ۲) بیچول، اړول؛ ۳) لسه مخې لسهري کول؛ ۴) چوپل، شرپول: ۵) له شونډو اواز ایستل.

**چپونی** (čapūnáy) نر.م. د صابون پوچکه، د صابون خورکی، د صابون پوچک.

**چپونی** (čapū́nay) نر.م. (ج. چپوني) ۱) څپونی دسترخوان کوندری؛ ۲) وروکی تیکری.

**چپه** (čapá) ښځ.م. ۱) څپک، د څلورو ګوتو اندازه؛ ۲) د بېړۍ چپه؛ ۳) اپوته، پرمخ، نسکور؛ ۴) د ناروغی غلبه؛ ۵) د اوبو څپه، موج؛ ۶) منډه، د دوو غواپانو غوېل؛ ۷) مچه، مچو، مچکو؛ ۸) مخالفت؛ ۹) نارستي، بدبختي.

**چپه پاتا** (čapapātā́) ښځ.م. شرنه، طرد.

**چپه چپایي** (čapačupāyí) ښځ.م. ارامه ارامي، چوپه چوپتیا، کراره کراري.

**چپه کول** (čapakawə́l) مص. مت. اپوته کول پرمخ کول، اړول، نسکورول.

**چپه کېدل** (čapakedə́l) مص. ل. ۱) اوښتل اپوته کېدل؛ ۲) قسمت خرابېدل.

**چپه لار** (čapalā́r) ښځ.م. ۱) کږه لاره، غلطه لاره؛ ۲) کږه شینځه، د وینتو کږه لاره.

**چپی** (čapáy) ص.نر.م. ۱) چپ سترګی، چغر؛ ۲) کیڼ لاس؛ ۳) کوږ ښکری غوایی؛ ۴) هغه غوایي چې ښکر یې مات وي ۵) نر.م. چاپی، تاپی؛ ۲) نښانه، نښه.

**چپیا** (čupyā́) ښځ.م. خاموشي، کراري، ارامي.

**چپېدل**[1] (čupedə́l) مص. ل. غلی کېدل، کرارېدل.

**چپېدل**[2] (čapedə́l) مص. ل. ګوښه کېدل، کږېدل، څنګ ته کېدل.

**چپېړه** (čapeṛá) ښځ.م. څپېړه، چپلاخه.

**چت** (čat) نر.م. ۱) کابېن، سقف؛ ۲) پوړ، منزل؛ ۳) پوچ، تش کالتوس؛ ۲) د چټکې اواز.

**چتر** (čatár) نر.م. ۱) چترکی، ډبک، وزه سپېره یا خړه مرغۍ ده؛ ۲) کمزوری، بې قوته، ضعیف؛ ۳) څلور غاښي اوبښ؛ ۴) پکه ککرۍ، تاس کپرۍ، کټی سر؛ ۵) د زخم تر جوړېدو وروسته پاتې نښه؛ ۶) چجه، بلۍ؛ ۷) په بیاتي پرېکړې زلفې چې په تندي راځانګې؛ ۸) ص.نر.م. صفا پاک؛ ۹) لويه چترۍ؛ ۲) و ګ. پراشوټ؛ ۳) د بام راوتلې او چتر غوندې برخه.

**چترک** (čatrák) نر.م. د بېهېو یوه لوبه.

**چترکی** (čatrakáy) ص. نر.م. لوېشتکی، لنډی، لوېشتېنک، تیتکی، غونډکی.

**چترنګ** (čaturáng) نر.م. مو. د یوه طرز نوم دی چې په یوه برخه کې یې مانا لرونکې کلیمې او په پاتو دوو برخو کې یې د ترانې، تروټ، او سرګم مهمل الفاظ راځي.

**چتره لار** (čatralár) ښځ.م. خرګنده لاره، معلومه لاره، عامه لاره، پاکه لیاره، سپینه لاره.

**چترۍ** (čatráy) ښځ.م. ۱) وروکی چتر؛ ۲) ص. ښځ.م. پاکه لاره؛ ۳) داغي، داغداره.

**چتر** (čatár) نر.م. پرتوکر باندې لګول شوی تاپه.

**چتکي چتکي** (čatkičatkí) ص. نب. ۱) لږ لږ، کم کم؛ ۲) تکي تکي، خال خال.

**چتله** (čatlá) ص. نب. ۱) سولېدلی، منبلی شوی؛ ۲) اوره شوی، مېده شوی.

**چته** (čatá) ښځ.م. ۱) دګبینه تخته، د مچیو تمبکه؛ ۲) رنګ، څېره؛ ۳) سرپوښه بازار؛ ۴) فکر، سوچ، اند، خیال؛ ۵) شان ساتنه؛ ۶) حد، اندازه، انساني او اخلاقي حدود.

**چتی**[۱] (čatáy) نر.م. ۱) چترکی، چتکی، چتر؛ ۲) چوتی، لنګ؛ ۲) جانګی، نېکر، سلډراج.

**چتی**[۲] (čutáy) نر.م. لېخکی، لخک، چوړ، پونکي، لخه کی.

**چتیز** (čatíz) ص. نر.م. ج. پوریز، طبقه يي.

**چټ** (čaṭ) ص. نر.م. ۱) غریب؛ ۲) ږيره خرېلی؛ ۳) تباه؛ ۴) نر.م. کودی، کپړ؛ ۵) هغه لوښي چې ناولې اوبه په کې اچول کېږي؛ ۶) پای ته رسېدلی کار؛ ۷) تیار، چټک؛ ۸) مست غوا؛ ۹) مجرد او بېکاره سړی؛ ۱۰) ق. بالکل.

**چټاق** (čaṭáq) نر.م. ۱) شوخ، شیطان؛ ۲) مچ، حرامزاده؛ ۳) تېز، بې پروا، چالاک.

**چټاک** (čaṭák) نر.م. چیټک، چیټاکی، چټاکی، د پاو څلورمه برخه؛ ۲) لږ شی، لږ څیز.

**چټاوټ** (čaṭawáṭ) نر.م. ناځاپي ګوزار، ناځاپي وار، نابېره وار.

**چټايي** (čaṭāyí) ښځ.م. پلاستیکي سترنجي، پوزی، انډېری، پوزکی، کمکی پېڅول.

**چټ پټ** (čaṭpaṭ) ق. ۱) سمدلاسه، ژر تر ژره؛ ۲) تباه شوی؛ ۴) ببخي خلاص شوی (کار)

**چټ پټي** (čaṭpaṭí) ص: نب. ۱) سملاسي، سم له لاسه، له واره سره؛ ۲) تیار، چمتو، اماده.

**چټک** (čaṭák) ص. نر.م. ۱) تېز، چابک، چست؛ ۲) نر.م. و ګ. څټک.

**چټک تسمه** (čaṭaktasmá) ښځ.م. ملابند، ملاترونې، د ملا ترلو پټی، ملاوستنې.

**چټکتوب** (čaṭaktób) نر.م. تېزي، چستي، چابکي، چټکي، چټکتیا، چټکوالي.

**چټکول** (čaṭakawə́l) مص. مت. تېزول، چابکول، جلتول، چټکول، چوېکول.

**چټکه** (čaṭká) ښځ.م. ... دالان ... تو ...

**چټکی** (čatkáy) نر.م. ځنګلي، زیږی.

**چټکی** (čatkáy) نبځ.م. ۱) څټکه؛ ۲) څیری، ځنګه، چوټۍ، د هندوانو د سراوږده ویښتان؛ ۳) سکوندکه، سکوندارہ، نوکاره.

**چټکېدل** (čatakedə́l) مص.ل. تېزېدل، چابکېدل.

**چټل** (čatə́l) ص. نر.م.ج. ککړ، ناولی، ناپاکه.

**چټلتوب** (čataltób) نر.م. ککړوالی، ناولتوب، مرداري، مردارتوب، چټلتیا، چټلوالی.

**چټلول** (catalawəl) مص. مت. ککړول، خیرنول، ناولی کول، مردارول.

**چټلي** (čatalə́) نبځ.م. ناپاکي، ناولتیا، مرداري، ککړتیا.

**چټلېدل** (čataledə́l) مص.ل. ککړېدل، خیرنېدل، ناولی کېدل، مردارېدل.

**چټني** (čatní) نبځ.م. چکني، تریو خواره دی.

**چټو**[1] (čatú) نر.م. د لرګي اونګ، د لرګي منلسته یا بغری، د لرګي یو دول لنګری.

**چټو**[2] (čató) ص. نب. لـړو، لړوڅتو، چټو لـړو، لاړي څتي، فضول خرڅه، مسرف.

**چټول** (čatawə́l) مص. ل. ۱) تباه کول، بربادول؛ ۲) سرته رسول، پوره کول.

**چټولړو** (čatūlarú) ص. نر.م.ج. ۱) له یوه سره ګډوډ او مردار، ګډوله؛ ۲) فضول خرڅه.

**چټه** (čata) نبځ.م. ۱) سود خوري، سود کول؛ ۲) بې باکه ښځه، مسته ښځه، ازاده ښځه.

**چټی** (čatə́y) نبځ.م. ۱) پوړنی، ټیکری، زړوکی؛ ۲) لیک، خط، حواله، رقعه.

**چټي** (čatí) ص.نب ۱) فضول، اوباش؛ ۲) مضر؛ ۳) زرونه، تاوان.

**چټیات** (čatyát) نر.م. فضولې او چټي خبرې.

**چټي برو** (čatiburó) ص.نب. اوباش سړی.

**چټېدل** (čatedə́l) مص.ل. ۱) بربادېدل، تباه کېدل؛ ۲) ختمېدل، سرته رسېدل.

**چټي رسان** (čitəyrasán) نر.م. داکي، خط راوړونکی، لیک راوړونکی، پوسته رسان.

**چج** (čaj) نر.م. ۱) چج، د غنم او نورو غلې دانې د پاکولو آله؛ ۲) پښتی.

**چج بواري** (čajbuwārí) نبځ.م. صفایي، ستره کونه، پاکونه، صفا کونه.

**چجک** (čaják) نر.م. ۱) د توپک ګوړ، د توپک لینډی؛ ۲) د توپک ماشه.

**چجکی** (čajakáy) نر.م. ۱) تلکه، دام، پړکه؛ ۲) نبځ.م. اړخی، پښتی، د بدن د پښتیو سر؛ ۳) نر.م. د کبانو د نیولو جال؛ ۲) پرده، بیتر؛ ۳) وړوکی چج.

**چجوايي** (čajwāyí) نبځ.م. د غلې د پاکولو یا صفاکولو کار او کسب.

**چجه** (čajá) نبځ.م. ۱) د چت وزر، د چت پېسک؛ ۲) د کبانو د نیولو لپاره لښتیز دام؛ ۳) پښتی؛ ٤) د مار د سرجګ نیول؛ ٥) شپول؛ ٦) هغه لرګی چې د مات شوي هډوکي ترل کېږي.

**چچ** (čač) نر.م ۱) پرویزی، چج، غلبېل؛ ۲) له مزرو څخه جوړ شوی لوښی؛ ۳) ګنډیره، هغه توکری چې شیدې او مستې ترې لاندې اېښودل کېږي.

**چچاړی** (čačā́ray) نر.م. ټاپو، جزیره.

**چچخه** (č(i,a)čə́xa) نبځ.م. نسل، تومنه.

**چچړ** (čičár) نر.م. بې شرمه او سپین سترګی سړی.

**چچړن** (čačrán) ص.نر.م. ۱) چوخړن، چخن، څوک چې سترګې یې تل چخې کوي؛ ۲) اوبړن اوبجن، نری، چچړوبن، چړچوبن.

**چچړوبن** (čačrobán) ص. نر.م. ۱) چیړچوبن، اوبړن؛ ۲) باسی نکولی؛ ۳) چیخن، چخړن.

**چچگر** (čačgár) نر.م. غلبېل جوړونکی، چڅ جوړوونکی او پلوروونکی.

**چچنه** (čacə́na) ښځ.م. چنچنه، يوه مرغۍ ده.

**چچو** (čačó) ښځ.م. ۱) تی، سینه؛ ۲) دماشوم لاس، چاچی.

**چچوغاړه** (cacogara) ښځ.م. پسر اووړو باندې د کوچني د سپړوني حالت.

**چچوګی** (čačogáy) ښځ.م. د چچو مصغر.

**چچه** (čáča) ښځ.م. اچه، اچې، د وزو د شړلو اواز.

**چچې** (čačé) ښځ.م ۱) د ورو پسه ژبه لاس ته وايي؛ ۲) چندرو، د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**چچی** (čičáy) نر.م. وګ. غابښ چچی.

**چخ** (č(a,u)x) ص.نر.م. ج. ښخ، چوخ، ورننوتی.

**چخ** (čax) نر.م. کوري، چیغه، د سپي دشړلو اواز.

**چخا** (čxā) نر.م. ۱) کوچنیان سپي ته چخا وايي؛ ۲) کوري، چغه، چخه، چیغه، توتو.

**چخاښکی** (čxaṣkáy) نر.م. زامه، ژامه، د زامې اخیره برخه.

**چخپت** (čaxpít) ص.نر.م. چیت پیت، چخپېرت، مړلی شوی، چپېرت، چپرېخ.

**چخپیتوالی** (čaxpitwā́lay) نر.م. چپېرېخوالی، چیت پیتوالی، پایمالېدنه.

**چخپیتول** (čaxpitawā́l) مص.مت. چپېرتول، چپرېخول، چپتول، پایمالول، چیت پیتول، چخرېتول.

**چختاړ** (čaxtā́ṛ) ص.نر.م. چیختاړ، چخپېرت، لتاړ، پایمال، چختاړې شوی، چت شوی.

**چختاړول** (čaxtāṛawā́l) مص.مت. چیتول، لتاړول، موښل، خرمیچول.

**چختک** (čaxták) نر.م. ۱) په کوهي او یا کاریز کې کارکوونکی؛ ۲) دوه خاښې موري.

**چخته** (čaxtá) ښځ.م. پتک، هغه نرم لرګی چې کوچنیان ورې ورې ګېټکې په ولي.

**چخچی** (čaxčáy) نر.م. تیلی، نری دکی، نری او لنډ لرګی چې سابه وریاندې للون کوي.

**چخړ** (čaxáṛ) نر.م. چکړ، چیکړ، ختې، چیکړې.

**چخړبه** (čaxṛabá) ښځ.م. ۱) ختې، چکړ، چیکړ، د باران له لامله ځمکه خته کېدنه؛ ۲) ملغوبه، ګډوډ شوی شیز؛ ۳) زیبېښنه.

**چخړک** (čaxṛák) ص.نر.م. چخن، چخړن، چیخن، چخړې سترګې سری.

**چخړوبن** (čaxṛobán) ص.نر.م. نری، اوبلن.

**چخړوبنتوب** (čaxṛobantób) نر.م. چخړوبنتیا، چخړوبنوالی، اوبرنوالی، اوبلنوالی.

**چخړوبنول** (čaxṛobanawā́l) مص.مت. چخړوب کول، اوبلنول، اوبجنول، نرمول.

**چخړوبنېدل** (čaxṛobanedə́l) مص.ل. اوبرنېدل، نرمېدل، اتوب کېدل، چخړوبن کېدل.

**چخړه** (čáxṛa) ښځ.م. (ج. چخړې) چخنه، چیخې، چخه، چخرې، د سترګې چخې.

**چخکی** (čaxakáy) نر.م. کیخې، کوخک، کخکې، سپین، نری او کوچنی چینجی.

**چخل** (čixə́l) مص.مت. ننه وستل، منډل.

**چخله** (čixā́la) ښځ.م. چوکه، د چوخولو آله.

**چخلی** (čixaláy) مف.نر. چوخول شوی، چوخېدلی، چوخ شوی، چخ شوی.

**چخن** (č(i,a)xán) ص.نر.م. ۱) زولن، چوخړن، چخن سترګی؛ ۲) ناولی؛ ۳) تت؛ ٤) پساتي.

**چخندی** (čaxandáy) نر.م. کرندی، تېره لرګی دی چې ګازرې او... پرې ایستل کېږي.

**چخنه** (čixə́na) ښځ.م. چخونه، چوخونه، سوخونه، منډنه، ننه ایستنه، چوکه کونه.

**چخول** (č(a,u)xawə́l) مص. مت. و ګ. چوخول.

**چخولی** (čixawə́lay) مف. نر. م. ۱) سوخولی، چوکه کړی، ننه ایستلی؛ ۲) لمسولی، پارولی؛ ۳) بنغ شوی، لک شوی.

**چخونیا** (čixunyā́) ص. نب. ۱) شوربدلی، ورروست، امباري؛ ۲) چنیاسن، چنیاسي.

**چخه** (čáxa) بنځ. م ۱) و ګ. چخړی؛ ۲) و ګ. چخ ۳) شخه؛ ٤) د سپي د شړلو اواز؛ ٥) پخه، لږ شی، لږ مقدار.

**چخې** (čaxé) بنځ. م. ۱) د سپي د شړلو اواز؛ ۲) د چخه د جمعي شکل؛ ۳) و ګ. چخ.

**چخی** (čaxé, čixáy) بنځ. ج. چخړ، چوخړی، چړیخی، د سترګو خیری، چوخني.

**چخېدل** (čixedə́l) مص. ل. ۱) منډل کېدل، چوخېدل؛ ۲) تحریکېدل، پارېدل، بنخېدل.

**چخېدونی** (čixedū́nay) نر. م. سوخېدونی، منډل کېدونی، د چخېدو او منډل کېدو آله.

**چدام** (čedā́m) نر. م. (ج. چدامونه) لږشی، لږ کوټی، د یوې تولې اتمه برخه.

**چدی** (čedáy) نر. م. چې دی؛ دا کلیمه د تکیه کلام په ډول استعمالېږي.

**چډل** (čaḍál) نر. م. د خوراک د ګ کنډول، له خورو شخه د ګ خاورین لوښي.

**چډوسکی** (čaḍū́skay) نر. م. چډوکی، د هندواني او ختکي پوټکی.

**چر** (čar) نر. م. ۱) د چرچني اواز؛ ۲) د توکره د شیرلو اواز؛ ۳) طرز، عادت؛ ٤) سېلابي خاوره او خړه؛ ٥) چری، د خوسا اوبو لمبنتی؛ ٦) په غوره کې؛ ۷) پارونه، لمسونه.

**چراتی** (čarātáy) بنځ. م. د توبک هغه چري چې له کانز شخه جوړ شوي وي.

**چرار** (čarā́r) نر. م. ۱) د مرغیو او چرچرو اواز؛ ۲) د توکره د شیرې کولو اواز.

**چراسپه** (čarāspá) بنځ. م. دوزو له وژغنو شخه جوړ شوی پړی؛ د اوبو د بار د تړلو طریقه.

**چراغ** (črāğ) نر. م. (ج. چراغونه) څراغ، ډیوه.

**چراغان** (čarāğā́n) نر. م. ج. څراغان، د خوښۍ او جشن په وخت کې څراغونه لګول.

**چراغک** (črāğák) نر. م. ووړکی څراغ، څراغګوټی، څراغکی.

**چراګاه** (čarāgā́h) بنځ. م (ج. چراګاوې) څرځای، ورشو، د مال د څرولو ځای.

**چراوی** (čarāwáy) ص. نر. م. تقلید کوونکی، ملد، پېښې کوونکی، پېښمار.

**چرایي** (čarāyí) بنځ. م. د لرګیو د شیرلو او ماتولو مزدوري ا کار.

**چربانګ** (čərbā́ng) نر. م. د چرګ د بانګ وخت، د شپې اخېره برخه، ورروستی شومه.

**چربانګی** (čərbāngáy) نر. م. پشلمی.

**چربل** (čarbál) نر. م. د آس جلو چې له سپنسیو شخه جوړېږي.

**چربور** (čarbór) ق. چیرې بېرې، غونډ، تول.

**چربوری** (čarbóṛay) نر. م. بوټی، د غوښې چم بوټی غوښنه، شله غوښنه، د غوښې سرخي.

**چربه** (čarbá) بنځ. م. خاکه، نقل، مسوده.

**چرت**[1] (čurt) نر. م. (ج. چرتونه) خیال، چورت، فکر، تصور، مزاج، طبیعت.

**چرت**[2] (črat) نر. م. ۱) چرت، د اوسو داره؛ ۲) د سترګو ړندېدنه.

**چرتا** (čratā́) بنځ. م. د لاړو د توکلو اواز.

**چرتکی**[1] (čratakáy) نر. م. اوباش، شړوبی، اوږد شېدونکی، اوږشېدلی.

**چرتکی**[۲] (čortakáy) ص. نر.م. ۱) بې ثباته، موقتي؛ ۲) بې ځایه ټریکې وهونکی.

**چرته** (čárta) ښځ.م ۱) څېره، بڼه؛ ۲) ض. چېرته، چېري، کوم ځای ته، استفهامي مکاني ضمير دی.

**چرتي** (čurtí) ص. نب. فکري، په چرت کې، چورتي، اندېښمن، په خيال کې.

**چرته** (čurtá) ښځ.م. هیلی، وره هیلی.

**چرچر** (čarčár) نر.م. ۱) د مرغیو اواز؛ ۲) چټي غږېدنه؛ ۲) څرڅر، اوبن ته د اوبو د څښلو په وخت کي استعمالېږي.

**چرچرک** (čarčarák) ص.نر.م. ۱) ګړبو، چرچري بېځایه خبرې کوونکی؛ ۲) یو ډول حشره ده.

**چرچوبی** (čarčobáy) ښځ.م. و ګ. چرچوبی.

**چرچور** (čarčū́r) نر.م. ۱) شور ځور؛ ۲) ص. نر. م. ج. تباه، برباد؛ ۳) وندې وندې کونه.

**چرچورکی** (čarčúrakáy) ښځ.م. کسرری، چرچوری، چورچورکه، یو ډول حشره ده.

**چرچونګی** (čarčūngáy) ښځ.م. یو ډول مرغی ده

**چرچه** (čarčá) ښځ.م. و ګ. چرچه.

**چرخ** (čarx) نر.م. و ګ. څرخ.

**چرخل** (čarxíl) نر.م. ۱) کمرګره، چرخولک، د چرګ تاج؛ ۲) د پټکي شمله.

**چرخولی** (čarxwaláy) نر.م. د دېګي د سر پوښ لاستی (موټی).

**چرخه** (čarxá) ښځ.م. د سپنسیو د غږلو اله.

**چرخي** (čarxí) ښځ.م ۱) څرخه، چرخه؛ ۲) د ضرب نښه (×).

**چرخېره** (čarxerá) ښځ.م. چوښتی، تورتوری، خوښکی، کشکو، چوشکی، شوښکوری.

**چرروت** (čururót) نر.م. ۱) د مرز اواز؛ ۲) مج. د غررري او بې زړه سري خبرې.

**چرروکی** (čarrokáy) نر.م. سپېرخکی، کیلک، د سپارې د تیر هغه لرګی چې د سرباندې په واسطه جغ او تیر سره کلکوي.

**چرره** (čirrá) ښځ.م. چیره، ریناره، ترانګه، ربکی تري، لته، شیره، زره رنجه.

**چرری** (čarráy) نر.م. جوری، څوری، څوره، یو څره مرغی ده.

**چرس** (čars) نر.م. حشیش، مخدره ماده ده چې د بنګو د بوټي له ګردې څخه لاس ته راځي.

**چرسي** (čarsí) ص.نر.م. (ج. چرسیان) ۱) د چرس عملي، پر چرسو روږدی.

**چرغ** (čarǧ) نر.م. ملاماتی، تېوس ته ورته یو ښکاري مرغه دی چې سپينه لکۍ لري.

**چرغره** (čarǧará) ښځ.م. په قاقا خندا.

**چرغزه** (čarǧáza) ښځ.م. غزې، یو ډول څره مرغی ده چې په اوبو کې ګرځي.

**چرغز** (čarǧáz) نر.م. چرګ بانګ، چرګ غږ.

**چرغو** (čarǧū́) نر.م. شین ګلی، یو ډول بوټی دی.

**چرک** (č(i,a)rk) نر.م. ۱) خیرنتوب، چټلي؛ ۲) زوې، نو، د دانې مرداري اوبه؛ ۵) څوخه، خوږ، هغه څه چې سرلې تېره وي؛ ۶) بربښ، څرېکه، درد څرېکه، ربښکه.

**چرکلی** (čarkaláy) نر.م. یو ډول ګیاه ده.

**چرکېدل** (čarkedál) مص. ل. د بدن پوستکی مېږي مېږي کېدل، بدن ته ستني ورچوخېدل.

**چرګ** (čarg) نر.م. ۱) یو ډول کورنی مرغه دی؛ ۲) د ښاروي په تندي کې سپین ټاپی.

**چرګ بانګ** (čargbáng) نر.م. چرغز، چرګ غږ، د چرګ د بانګ وخت، د پېشلمي وخت.

**چرګ برګ** (čragbrág) ص. نر.م. ۱) برګ

**چرګ غالی** (čərgxālay) نر.م. چرګ غالی، کوډله، کوډی، د چرګانو کوډنی، مرغانچه.

**چرګ سابه** (čərgsābá) نر.ج. پالک، چرګوری، یو ډول مشهور سابه دي.

**چرګک** (čərgák) نر.م. ملاچرګک، کوډی چرګ، کوکوبیښ، بوبوتنکی، ملاګوډ.

**چرګ مرګو** (čərgmargó) نر.م. تیغی، توغی، توغکی، د چرګانو یو ډول ناروغي ده.

**چرګ ناري** (čərgnāré) ښځ.م. چرګ بانګ، چرګ غږ، چربانګ، چرګ بږغ.

**چرګ ناری** (čərgnāráy) نر.م. هغه مهلستیا چې چرګ په کې پوخ شوی وي.

**چرګوټی** (čərgúṭay) نر.م. چرګوری، وروکی چرګ، ورکوټی چرګ، د چرګ تصغیر.

**چرګی** (čərgáy) ص. نر.م. هغه غویی (غوشکی) چې په تندي سپین داغ ولري.

**چرګۍ** (čərgə́y) ښځ.م. څلور کنجه نغري چې د کوټې په منځ کنج کې ابستل شوې وي.

**چرلاو** (čarlāw) نر.م. ماشینخانه، د مشینونو کوټه، د ماشینونو ځای.

**چرلايي** (čarlāyí) ښځ.م. چلوایي، یو ډول سابه دي.

**چرلټ** (čurláṭ) ق. ۱) چورلټ، ګردسره، بېخي، قطعي؛ ۲) تمام، ټول، سراسر.

**چرلکی** (čurlakáy) نر.م. ۱) د پنېو پرونده، د پیزار پرونده، د مچني پرونده؛ ۲) د ښځې د مخصوص ځای چونګک او کچه.

**چرلند** (čurlánd) نر.م. عاجز، خاکسار، متواضع.

**چرلندی** (čurlanday) نر.م. چرلندی، پرپره.

**چرم** (čarm) نر.م. څرمن، پوست، پوټکی.

**چرمباز** (čarambáz) نر.م. سرمباز، ترمباز، د فریق یا پلوي خواته اخري غوایي.

**چرمښکی** (čarmaṣ̌káy) ښځ.م. شرموښکی، چرمښی، څرمښکی، کرمښار.

**چرمک** (čarmák) نر.م. د ترخې د دوک څرمن؛ هغه څرمن چې د دوک لاندنی برخه په کې بندېږي.

**چرموچرګ** (čarmučə́rg) نر.م. ۱) چرموچري، د بر پوست شوی؛ ۲) کورنی چرمښکی.

**چرموړ** (čarmóṛ) ص.نر.م. پایمال، مښل شوی، مروړل شوی، څرمبېچ شوی، چخپیت شوی.

**چرموړل** (čarmoṛə́l) مص.مت. پایمالول، مروړل، مښل، چخپیتول، چرموړول.

**چرمه** (čarmá) ښځ.م. لیس، چیرمه، پلن زري تار، د زر تارو نري پټه.

**چرمي** (čarmí) ص.نب. څرمین، د څرمنې، د څرمني سره تړلی، په څرمن اړوند.

**چرمینه** (čarminá) ورګینه، بانې، د څرمنې پړی.

**چرند** (čaránd) ص.نر.م.ج. کرتن، قرتو، قرتن.

**چرندک** (čurandák) نر.م. چوړندک، چتی، چتکی، چیتکی، پتکی.

**چرنګ** (čráng) نر.م. چرنک، شهدو پی، پیوړکی، یو ډول بوټی دی.

**چُرنګی** (čurangáy) نر.م. ناره یي مېږ.

**چرنی** (čarnáy) ښځ.م. د بوری توته، د ټاټ توته.

**چروب** (črób) ص. نر.م. خوړب، چاغ، مزی.

**چروډه** (črodá) ښځ.م. کوتې، غوجوری، قوتی د لوبو کولو لپاره وروکی ژور ځای.

**چروک** (čruk) نر.م. چرونکی، پار، د شپې او ورځې له اتمې برخې سره برابر د اوبو وېش.

**چره** (čará) ښځ.م (ج. چرې) ۱) ساچمه؛ ۲) د پالېز جویه؛ ۳) پټی په زرو برخو وېشل؛ ٤) هغه لوی اوبه چې له سیند څخه راجلا او تر لرې فاصلې پورې تړه له سیند سره یو ځای شي.

**چرهار** (č(u,a)rahā́r) نر.م. د مرغیو گڼ اواز.
**چرې** (čaré) ص. و گ. چېرې.
**چرۍ** (čaráy) ښځ.م. ۱) ژیړ آلو، کوک سلطان؛ ۲) کوچنۍ دیگ چې چوشکی ولري؛ ۳) ویاله؛ ۴) یوډول اغزن بوټی؛ ۵) یوډول بخاري ده چې پرېږ اوبو اودان او د پخلي ځای لري.
**چربدار** (čaredā́r) نر.م. چرې لرونکی، چره ییز توپک، ښکاري توپک.
**چربدل** (č(a,u)redә́l) مص.ل. چونېدل، چغېدل.
**چریک** (čirík) نر.م. پارتیزان، سرباز.
**چریکار** (čarekā́r) نر.م. ۱) بزگر؛ ۲) نوکر؛ ۳) شریک؛ ۴) دخولي دلاندني شونډي وېښته.
**چریکي**[1] (čirikí) ص.نب. پارتیزاني، په چریک پورې اړوند.
**چریکۍ**[2] (čarikáy) نر.م. ورغومی، کچې کی، سهرلی، سېرلکی، مرغومی.
**چړ** (čaṛ) نر.م. ۱) دروېزه، خیر تولونه؛ ۲) د باران تېزه شېبه؛ ۳) مخ خوری؛ ۴) سېلاب راوړي خاوري او شگې؛ ۵) د سېلاب لاره؛ ۶) قتل عام؛ ۷) د مندانو د منځ غټ لرگی.
**چړا** (čaṛá) نر.م. ص. کم عقله سړی؛ ۳) گونگ؛ ۴) دبنگړیوالو یو قوم دی.
**چړاخ** (čaṛā́x) نر.م. لوی زخم، ژور پرهار.
**چړاخول** (čaṛāxawә́l) مص. مت. زخم لویول، پرهار لویول، پیاوړور سترول.
**چړاخېدل** (čaṛāxedә́l) مص.ل. زخمي کېدل، پرهار ژلی کېدل، چړاخ کېدل.
**چړانگو** (čaṛāngú) نر.م. د هندوانو، بادرنگو او نورو تانگونه او جلغونه (شهلانگي).
**چړاو** (čaṛā́w) نر.م. چړ، تولوژنه، ډلوژنه، له ښهرمې او له یوه سره وژل.

**چړاوه** (čaṛāwá) ښځ.م. چکاوه، زېم، هغه اوبه چې د کاریز او بند تر تړلو وروسته لږې لږې تري راځي
**چړاوی** (čaṛāwáy) نر.م. و گ. چړاوې.
**چړپ** (čṛap) نر.م. ۱) شړپ، د اوبو د توېدلو اواز؛ ۲) د شونډو د یوځای کېدو اواز.
**چړپن** (čṛapán) ص. نر.م. ۱) اېلتسې ویونکی؛ ۲) چړپېدونکی او شړپېدونکی لوښی.
**چړپول** (čṛapawә́l) مص. مت. ۱) چړپول، په ځنې شي شونډې شړپول؛ ۲) داوبو د ک لوښي شوررول؛ ۴) تاواني کول، زیانمنول.
**چړپهار** (čṛapahā́r) نر.م. شړپهار، شړپی، چړپی، د چړپ چړپ اواز.
**چړپی** (čṛapáy) نر.م. ۱) شړپی؛ ۲) چړپا.
**چړپېدل** (čṛapedә́l) مص.ل. ۱) شړپېدل، په ځنې شي شونډې شړپېدل؛ ۲) تاواني کېدل، زیانمنېدل ۳) چړپېدل، مایعات شوررېدل.
**چړت پړت** (čṛatpṛat) ص. نر.م. ۱) غوړپر، د پر غوړ؟ ۲) هېڅ نه ویل، غږ نه کونه.
**چړتون** (čaṛtū́n) نر.م. تهکی، د توري پوښ، د چړې پوښ، غلاف، تکه.
**چړچکه** (čaṛčaká) ښځ.م. ۱) ماله، د شودیارې ماله؛ ۲) چکې، چک چک، تاکې، چاکې.
**چړچکې** (čaṛčaké) ښځ.م. لاس تکونه، تاړی، چک چکې، چکې، تاکې وهنه.
**چړچوبک** (čaṛčubák) ص. نر.م. چړچوبن، اوبلن، اوبړن، نرۍ.
**چړچوبه** (čaṛčobá) ښځ.م. کورت او غوړي.
**چړچوبۍ** (čaṛčobáy) ښځ.م. چمچوبې، لمبل ځای، جرچوبې، تشناب، غسل خانه، باس.
**چړچه** (čaṛčá) ښځ.م. جرچه، عیش او عشرت، ملې کول ...

**چرچې وهل** (čarčewahə́l) مص.ل. مزې کول، مېلې کول، چرچې کول، زيات مصرف کول.

**چرچيي** (čarčayí) ص. نر.م. ښځ.م. چرچي، عياش، مېلې کوونکی، چرچناک.

**چرغه** (čarğá) ښځ.م. چېښنکې، چوری، هغه تېره تيږه چې شپانه‌خپل څاروي په حلالوي.

**چرق** (čraq) نر.م. ١) چرک، د اوبو د توېيدلو اواز؛ ٢) شرق، تېز او تند باران.

**چرک** (črak) نر.م. ١) د لرګي د ماتېدو اواز؛ ٢) د دروازې تمبه، د دروازې اړم.

**چرکانی** (čarkānay) نر.م. برجی، بېلو، اسونی، مسخوره، هغه کانی چې چاکو، چاړه او نور شيان په تېره کوي.

**چرکاو** (čarkā́w) نر.م. چنګاو، د اوبو پونه، اوباشي، د اوبو شنل، چرتېيل.

**چرکاوول** (čarkāwawə́l) مص. مت. پونل، اوباشي کول، د اوبو شنل، د اوبو شيندل.

**چرکه**[١] (črakā́) ښځ.م. ١) ځريکه، ځانګه، درد، سوز؛ ٢) ځلېدنه، ځلا، بريښېدنه.

**چرکه**[٢] (čarká) ښځ.م ١) يو دول خړ رنګې مرغۍ ده؛ ٢) مج. بې همته او ناراسته سړی.

**چرکی**[١] (čurkə́y) ښځ.م. چوړکی، چاړه، چوړکی، چاړوکی، وړه چاړه.

**چرکی**[٢] (čarkáy) نر.م. چاکو، چاقو.

**چرګی** (čargáy) نر.م. د سينې هغه ماڵوره ځای چې کاڼي ولړي او لړي اوبه پکې بهېږي.

**چرنګ** (črang) نر.م. ١) چرنګ، شرنګ؛ ٢) له لوړه ځايه د لړو اوبو د توېيدو اواز.

**چرو** (čarū́) نر.م. و ګ. چرکه[١]؛ ٢) ص. نر.م. ناراسته او بې همته سړی؛ ٣) درويزګر، چرګر، خيرغوښتونکی، ...

**چروبن** (čarobán) ص. نر.م. ج. اوبلن، اوبرن.

**چروبی** (čarobáy) نر.م. ١) څروبی؛ ٢) پرچون خرخونه؛ ٣) چرووی، رنګريز.

**چروتوب** (čarūtób) نر.م. بې همتي، پستي.

**چروس** (čarū́s) ص. نر.م. بې همته، خروس.

**چروکی** (čarūkə́y) ښځ.م. چاړه، چاړوګی.

**چرول** (čarawə́l) مص.مت. ١) پاشل، اوبه لوستل، اوبه نوستل؛ ٢) پر دستو کول، بيول، له نسه کول، اسهالول.

**چرونګ** (črūng) نر.م. ١) د چرګوري چينګ چنګ؛ ٢) د چنچنو اواز.

**چرونګول** (črungawə́l) مص. مت. سيوول، چنګول، کوچنی چرګوري په اواز راوستل.

**چرونګی** (črungáy) نر.م. لړې اوبه، تکی اوبه.

**چرونګېدل** (črungedə́l) مص.ل. چينګېدل، سيوېدل، چنېدل

**چرونه** (čarawə́na) ښځ.م. ١) اوبه پاشنه، اوبه لوستنه، اوبه نوستنه؛ ٢) بيونه، په دستو کونه، د نسه کونه، عمل وروستنه.

**چرووی** (čaruwáy) نر.م. چروبی، څروبی.

**چروی** (čarawáy) نر.م. رنګريز، ننګريز.

**چره** (čará) ښځ.م. ١) د دروازې چوړ؛ ٢) تېلم، ترازه، ترتې، چنډه، د هندوانې دره.

**چره** (čará) ښځ.م. چاړه، چوړکی، چاړه.

**چرهار** (čurahā́r) نر.م. شرهار، شرپهار.

**چري** (čarí) نر.م. چنی، طالب، د جومات خادم، تورک تولوونکی.

**چريا** (čaryā́) ص. نب. اخته، بوخت، مشغول، لګيا، مصروف، لاس پر کار.

**چرياګر** (čaryāgár) نر.م. ژوبن، باغ‌وحش؛ د څاروبو، ځناورو، مرغانواو... د ساتلو ځای.

**چړیاو** (čaryā́w) نر.م. د ځیلې د بند هغه سرچې له سګک (غربي) سره تړل کېږي.

**چړیتوب** (čaritób) نر.م. ۱) دروېزه توب، دروېزه کول، توک تولونه؛ ۲) طالبي.

**چړېدل** (čaredә́l) مص.ل. ۱) چرچر کول، شرپېدل ۲) په دستو کېدل، دستونه کول.

**چړېس** (čarés) ص. نز.م. ناپاک، خوسا (سري).

**چزول** (č(a,i)zawә́l) جزول، سره کول، په غورو یا تېلو کې سره کول.

**چزېدل** (čazedә́l) مص.ل. جزېدل، وریتېدل، په غورو یا تېلو کې سره کېدل.

**چسپ** (časp) ص. نر.م.ج. برابر، سم، درست.

**چسپان** (časpā́n) ص. نر.م. ۱) چست، چالاک، ۲) تنګ او چسپ کالي.

**چسپانده** (časpā́nda) ص. نر.م. تکړه، چابک، اوچت، چست، چالاک، فعال.

**چسپناک** (časpnā́k) ص. نر.م.ج. سرېښناک، سرېښ لرونکی.

**چسپول** (časpawә́l) مص.مت. سرېښول، نښلول، نصبول، نصب کول.

**چسپېدل** (časpedә́l) مص.ل. سرېښېدل، نښلېدل، نصبېدل، نصب کېدل.

**چست** (čust) ص. نر.م. اوچت، چابک، چالاک، تکړه.

**چستي** (čustí) ښځ.م. اوچتي، چابکي، چالاکي.

**چستی** (čústay) نر.م. وګ. چوستی.

**چشپک** (čišpák) نر.م. د پوستین توټه، د پوستکي ورینه توټه.

**چشپېره** (čašperá) ښځ.م. پېړه کی، ببولاني.

**چشت** (čist) ند. د هوا د فشار، د یو چا د متوجه کولو، چوبولو په وخت کې ځانګړی اواز.

**چشتی** (čaštáy) ښځ.م. ۱) برخې، برنغ، دغتې او نس برخې (پرده)؛ ۲) د لښري توربې، د لښري هزار خانه، سل پاتې.

**چشم بندي** (čišmbandí) ښځ.م. ۱) نیرنګ، شعبده، حقه بازي؛ ۲) د جادوګرۍ په چلونو سره د شیانو بل ډول ښودنه، سترګبندي.

**چشمي** (čašmé) ښځ.م. عینکې، چشمکې.

**چشي** (čaší) نر.م. یو ډول ازغن بوټی دی.

**چښاک** (čašā́k) نر.م. څښنه، څښاک، چېښنه.

**چښتن** (č(i,a)ṣtә́n) نر.م. وګ. څښتن.

**چښچه** (časča) ښځ.م. پرخچه، دړه، توتې.

**چښکوری** (čaṣkū́ray) نر.م. چوښتي، چوښکه، چوړشکې، د کوزې، چاینکې او ... هغه برخه چې اوبه ترې راتویېږي

**چښکی** (čuṣkáy) نر.م. چوسی، ذکر، د سړي تناسلي آلت.

**چښل** (čṣә́l) مص. مت. څښل، چېښل.

**چښنوکی** (čaṣnū́kay) نر.م. ۱) چاګل، ګوډې، کوچنۍ مشک؛ ۲) یو ډول وړه مشکوله.

**چښنه** (čṣә́na) ښځ.م. چښنګ، څښنه.

**چښوبی** (čṣobáy) نر.م. شربت، مشروب.

**چښول** (čaṣawә́l) مص. مت. اوبه ورکول، اوبول، په اوبو مړول، خړوبول.

**چښونکې** (čṣū́nke) ښځ.م. چښنوکی، د شپنو مشکوله ډوله مشک چې غاړې ته یې اچوي.

**چښی** (čuṣáy) نر.م. سپل اغزی، وړوکی اغزن بوټی دی.

**چغ** (čaġ) نر.م. ۱) د مرغۍ آواز؛ ۲) کاڼې، هغه پرده چې د بانس له نریو لرګیو څخه جوړېږي؛ ۳) شور، ځوږ؛ ٤) د مرغانو د نیولو جال؛ ٥) ښیچ، د وړو بوره لونه ده؛ ٦) اورد.

**چغا** (čağá) ښځ.م. چغار، شور، ځوږ، چغاره.

**چغاته** (čağātá) ښځ.م. د لرګي اس.

**چغاغه** (čağāğá) ښځ.م. يو ډول تريو خوندۀ بوټی دی.

**چغال** (čağāl) نر.م. شغال، سورلندی.

**چغال غار** (čağālğár) نر.م. د کوچنيانو يو ډول لوبه ده.

**چغالکی** (čağālkáy) نر.م. چغښکی، دسترګي هغه کونج چې د پزې خواته وي.

**چغالي** (čağālí) ص. نب. ۱) خالي ميدان؛ ۲) خسک زردالو.

**چغالي ور** (čağāliwár) نر.م. د باغ وره دروازه.

**چغانغه** (čağānğá) ښځ.م. نانا، پودينه، ويلنی.

**چغانه** (čağāná) ښځ.م. سرينده، سارنګی، سارنګا؛ د موسيقۍ يوه آله ده او د رباب په ډول ښښتني سازګنل کېږي.

**چغانی** (č(u,a)ğānáy) نر.م. د زنې کوتی، زنخدان؛ د زنې ژور او ورننوتی ځای.

**چغاول** (čağāwál) نر.م. ۱) يو ډول پسول دی چې ښځې يې پر غاړه کوي؛ ۲) د باز او باښې او نورو غاړکې يا د غاړې بند.

**چغ بغ** (čağbəğ) نر.م. شور، ځوږ، غالمغال.

**چغ بوز** (čağbúz) نر.م. چغبوز، د ملخ په شېر يوه خزنده ده.

**چغتار** (čağtár) نر.م. دفقيرانو او ملنګانو چلتار.

**چغته** (čağtá) ښځ.م. يو ډول هيلی ده.

**چغټ** (čağát) ص. نر.م. چټل، ناولی، ناپاک.

**چغ چغ** (č(i,a)ğ) نر.م. شور، ځوږ، چغ چوغ.

**چغچی** (čağčáy) ښځ.م. و ګ. چغزی.

**چغر** (čağár) ص. نر.م. ج. ۱) کوږ سترګی؛ ۲) ږه سترګی، بټې او ټلې سترګې، چپ سترګی.

**چغرکه** (čağaraká) ښځ.م. چغری، يو ډول سپېره بوټی دی.

**چغرو** (čağrú) نر.م. کونګ، غټ کونګ، يو ډول مرغه دی چې د شپې الوځي.

**چغربه** (čağrəbá) ښځ.م. ۱) شور، ځوږ، غوغا؛ ۲) دبدبه، په قهرجن اواز سره تهديدونه.

**چغرکه** (čağrəká) ښځ.م. پتيرچکه، چکله، هغه اوره چې نه خميره وي او نه پتير.

**چغری** (čağráy) ص.نر.م ۱) چغزي، مغز لرونکی؛ ۲) نازک.

**چغزی** (čağzáy) ښځ.م. چغچی، دبادام مغز، د غوز مغز.

**چغزي** (čəğzí) ص. نب. ۱) چغچی، کاغذي بادام يا غوز، ګوک؛ ۲) معتمد، امين، صادق.

**چغ سترګی** (čağstárgáy) ص.نر.م. ۱) کوږ سترګی، چوغ سترګی؛ ۲) بټ سترګی.

**چغشکي** (čğaškí) نر.ج. د کوچنيانو ځني.

**چغکی** (čağakáy) نر.م. ۱) د مرغانو شور؛ ۲) د کوچنيانو شور ماشور.

**چغل** [1] (čuğə́l) ص. نر.م. ۱) چغلګر، چوغلګر، چوغلمار، چغلباز؛ ۲) چغل، غلبېل.

**چغل** [2] (č(i,a,u)ğə́l) غټ سوری لرونکی غلبېل.

**چغل بازي** (č(i,a)ğəlbāzí) ښځ.م. تر کوزدې وروسته د نجلۍ د پلار کره د هلک او نجلۍ خاصه ليدنه کتنه.

**چغل خور** (čoğulxór) ص. نر.م. چغل، چغلګر، چغلګير، چوغلمار، چغلمار، چغلباز.

**چغله** (čağlá) ښځ.م. د يوه شي د اوږدوالي او پسور اندازه.

**چغلي** (čuğlí) ښځ.م. چغل خوري، چغله، چوغله، شيطاني، چغلګوزي.

**چغ ماچغ** (čaǧmāčáǧ) نر.م. ۱) غنجل باز، غنجلی، یو ډول لوبه ده؛ ۲) د لرګي آس.

**چغمټ** (čaǧmáṭ) ص. نر.م. ۱) غټ، شوروب؛ ۲) څوک چې د سترګو سپین یې زیات وي.

**چغمټن** (čaǧmaṭán) ص. نر.م. ۱) ور.ګ. چغمټ؛ ۲) کلک، سخت؛ ۳) لانجه مار، جنجالي.

**چغمټه** (čaǧmaṭá) ښځ.م. کلکه پټیره ډوډی.

**چغمغی ټوپک** (čaǧmaǧayṭopák) نر.م. چقماقي ټوپک، سخور ټوپک.

**چغندر** (čuǧandár) نر.م.ج. لبلبو، چقندر.

**چغنه** (čaǧána) ښځ.م. ګانی.

**چغنی**[1] (čaǧanáy) نر.م. د اوبو یو ډول مرغه دی چې د زاني په څېر اوږده غاړه لري.

**چغنی**[2] (čuǧanáy) نر.م. حلاجي، الاجي، هغه آله چې پنبه او پنبه دانه سره جلا کوي.

**چغ و پغ** (čaǧopaǧ) نر.م. شور ماشور، شور.

**چکچکه** (čikčiká) ښځ.م. ۱) پنی، ستاره، داني ۲) د دوارو لاسو پړکول.

**چکو** (čáku) نر.م. چاجی، وړوکی لاس، کوچنی لاس، د کوچنیانو په ژبه لاس ته وایي.

**چکوتره** (čakotará) ښځ.م. د لیمو د کورنۍ یو ډول میوه ده.

**چکوچکو** (čkočkó) نر.م. چکوری چکوری، د واره خوسکي د رابللو اواز.

**چکور**[1] (čakū́r) ص. نر.م. چالاک، تېز.

**چکور**[2] (čakór) نر.م. مو. له ۳۸ ماترو شخه جوړ د یوه تال نوم.

**چکوړ** (čakóṛ) نر.م. ۱) چکوره، چکوري؛ د خوسکي د شرلو اواز؛ ۲) خوسکی.

**چکوړی** (čakoṛáy) نر.م. ۱) خوسی، خوسکی؛ ۲) سکوری، د خوسکي د شرلو اواز.

**چکه** (čaká) ښځ.م. ۱) له شرومبو او مسو چې اوبه ېیلې شي پاتې برخې ته چکه وایي؛ ۲) نر.م. شبپره؛ ۳) فرېب؛ ٤) اچه، د وزې د شړلو اواز؛ ٥) تجربه لرونکی غل؛ ٦) یو اغزن بوټی دی.

**چکه چور** (čakačū́r) ص. نر.م. ۱) بدمعاش، اوباش؛ ۲) سخت، کنجوس؛ ۳) غل، ټګ.

**چکه دانه** (čakakdāná) ښځ.م. یو بوټی دی چې سري وري داني نیسي.

**چکې** (čaké) ښځ.م. ۱) لاس تکونه، چک چکې، لاس پړکونه؛ ۲) د وزې لپاره اواز.

**چکی** (čakáy) ښځ.م. کلچه، د کلچې په ډول یوه چکی صابون؛ ۲) د اوبو غور غوری؛ ۳) ګیچی، مغز؛ ٤) جینی؛ ٥) ککوری، ګرده ډوډی؛ ٦) د برقي او د بزلي ژرندې پل؛ ۷) ص. ښایسته؛ ۸) چاغ، په غوښو ډک.

**چکیده** (čakidá) ښځ.م. ۱) د مستو او شلومبو چکه؛ ۲) خښدلي ډوډی.

**چکی سری** (čakaysáray) ښځ.م. کونتهی، امسا، بینت، غوند سري امسا.

**چګ** (čag) ص. نر.م.ج. و.ګ. جګ.

**چګټ** (čagaṭ) نر.م. پوندانه، پنبه دانه، چګت.

**چګس** (čagás) نر.م. ۱) هغه لرګی چې باز او بابه ورباندې کښېني؛ ۲) هغه دوه لرګي چې ګوډ شخص تر تخرګ لاندې نیسي او باندې ګرځي.

**چګون** (čagón) نر.م. د چنار په څېر یوه ونه ده.

**چل** (čal) نر.م ۱) تګي؛ ۲) اسره، تمه؛ ۳) طریقه؛ ٤) دېښمني؛ ٥) د ګېدړې کور؛ ٦) سلوک؛ ۷) د ژرندې تکتکی؛ ۸) وار، ځل؛ ۹) د برقي یا د بزلي ژرندې ماشین؛ ۱۰) ق. جاري، چالو.

**چلاچل** (čalāčál) نر.م. ۱) تګ راتګ، تلل راتلل د سفر تیاری؛ ۲) ... سلسلهٔ.

چلاو[1] (čaláw) نر.م. ۱) گوزاره، چلېدنه، گذران ۲) له کاريز څخه د ختې ايستلو رسی.

چلاو[2] (čaláw) نر.م.و گ. چلو.

چلاو صاف (čalawsáf) نـر.م. صـافي، چلـو صاف، سوری سوری لرونکی لوښی.

چلباز (čalbáz) ص. نر.م. چلي، تګ، تګمار.

چلپټی (čalpaṭáy) نر.م. چل ، غوړی.

چلتار (čiltár) نر.م. چالتار، زرين يا د سوندي تارو څخه جوړ شوی مزی دی چې عربان، ملنګان يې پر خپل سر باندې د سره دسمال د پاسه تړي.

چلچل (čalčál) نر.م. ۱) چلاچل: ۲) بېره، تلوار.

چلخی (čalxáy) نر.م. شلخی، يو ډول سابه دي.

چلر (čulár) ص. نر.م. ۱) ساده، ناپوه، کم عقل؛ ۲) لوچک، اوباش، بدمعاش.

چلښت (čalaṣt) نـر.م. ۱) گـذاره، چـلاو، چلند؛ ۲) جاري کېدنه؛ ۳) رواج موندنه کرنـې.

چلغوزی (čalğozáy) نر.م.و گ. جنغوزی.

چلغه (čalğa) ښځ.م. اندازه، د اوړدوالي او پسور.

چلغت (čalğát) نر.م. زغره، زره.

چلک (čilák) نر.م. ۱) تيم، پيپ: ۲) شېرداني.

چلکه (čalaká) ښځ.م. د اوبو څپه، چپه، موج.

چلګری (čalgáray) فا. نر.م. دوړ، تغر جوړوونکی هغه څوک چې تغر اوبي.

چلګری (čalgaráy) ص. نر.م. چلولي، چلباز.

چللو (čalaláw) نر.م. ۱) چلپلو، د ژرندي تکتکی، د ژرندي ډ ګ ډ ګی.

چلم (čilám) نر.م. ۱) چيلم، د تنباکو څکلو د خاورو يا مسو څخه جوړه يوه آله ده چې اوبه په کې اچول کېږي؛ ۲) ژانه، ژاني؛ ۳) چلم، حقه.

چلمار (čalmár) ص. درغلګر، درغلکار، تګمار، چلکار.

چلمچي (čilamčay(i)) نـر.ښځ.م. لاسلـوني، لګن، لاس پرمينځونی.

چلمرده (čilmardá) ښځ.م. د ريشکي غـوندې يو بوټی دی چې د سوغولو کار ترې اخلي.

چلم کښ (čilamkáṣ) ص. نـر.م. چلمي، چلم څکوونکی، د چلم عملي.

چل مل (čalmál) نر.م. چل ول، چم، تګي بـرګي، غولونه، فريب، چل، چل بازي، تېر ايستنه.

چلن (čalán) نر.م. ۱) چلند، خوی، سلوک؛ ۲) تله راتله؛ ۳) په معامله کې د اعتبار ور؛ ٤) طرز.

چلنج (čilínj) نـر.م. ۱) مبارزې ته راغـوښـتـل، رقابت کونه؛ ۲) اعتـراض کـونه، ادعا کـونه؛ ۳) منهمونه؛ ٤) مطالبه؛ ٥) حق. غوښتنه.

چلندبېلګه (čalandbélga) ا. د چال چلند ماډل، د چلند دود.

چلندچوپړ (čalandčopáṛ) ا. ترانسـپورتي خدمت، نقليه خدمت.

چلنددوی (čalanddóy) ا. روان قـانـون، نافـذ قانون.

چلندغوټه (čalandğúṭa) ښځ.م. ول، هغه غوټه چې په اسانۍ سره خلاصېږي.

چلندوالی (čalandwálay) نر.م. جاري کـېدنه، رواج موندنه، چلښت، دودموندنه.

چلندول (čalandawál) مص. مت. رواج ورکـول، جاريکول، رواجول.

چلنده لار (čalandalár) ښځ.م. عامه لاره، جاري لاره، پاچاهي لاره، چالانه لاره.

چلندي (čalandí) ص. نـب. جـاري شـوی، رواج شوی، رواجي، مروج، دود شوی.

چلندېدل (čalandedál) مـص.ل. چلند کـېدل، جاريدل، رواجيدل، جاري کېدل.

**چلني** (čalaní) ښځ.م. ۱) چالانېدنه، چلېدنه، جاري کېدنه؛ ۲) د چالانېدو تکس.

**چلو** (čaláw) نر.م. (ج. چلوونه) چلاو؛ هغو وريجې چې سپېنې پخې شي يعنې رنګ ورنکړل شي.

**چلوټه** (ča'waṭá) ښځ.م. (ج. چلوټې) ۱) ګذاره، سلوک، راشه درشه؛ ۲) چل، غولونه.

**چلوڅاڼ** (čalawčāṇ) ا. وريجوڅاڼوونی، چلوصاف.

**چل ول** (čalwál) نر.م. چل، مکر، فريب، ټګي.

**چلول** (čalawál) مص.مت ۱) رواجول، جاري کول ۲) حرکت ورکول؛ ۳) استعمالول؛ ٤) ګذاره کول؛ ٥) بدکاري کول؛ ٦) اداره کول، کنترول کول؛ ۷) بهول، بوتلل، بوول.

**چلولي** (čalwalí) ص.نب. چلباز، ټګ، چمباز.

**چلولی** (čalawálay) فا.نر.م. ۱) جاري کړی، رواج ورکړی؛ ۲) چالان کړی؛ ۳) بارونه کړی؛ ٥) استعمال کړی.

**چلومبه** (člumbá) ښځ.م. مچلوغزه، مچنوغزه، مچوغنه، مچنوغه، مچوغنده.

**چلون** (čalū́n) نر.م. ګذاره، رفتار، چلښت، چلند.

**چله**[1] (čalá) ښځ.م. ۱) د نارينه غوروالی؛ ۲) ځپه؛ ۳) سېلاب، توپان؛ ٤) ګذاره، وخت تېرې.

**چله**[2] (čila) ښځ.م. ۱) خلوت، څپله، د عبادت لپاره څلوېښت ورځې په خلوت کې کېناستنه؛ ۲) د کوزدې ګوتمه؛ ۳) د ژمي څو مياشتې.

**چلي** (čali) ص.نر.م. و ګ. چلباز.

**چلی**[1] (čaláy) ص.نر.م. ۱) کمزوری، ضعيف؛ ۲) هغه تېره لرګی چې ګازرې پرې راباسي.

**چلی** (čaláy) ښځ.م. ۱) وښکالی، ګونګوری، ورې؛ ۲) د نارينه و يو دول ګوتمې؛ ۳) د پنې (وچنې) پوزه او مخکنی څوکه.

**چلی**[3] (čaláy) نر.م. ښکری.

**چليپا** (čalipā́) ښځ.م. ۱) د ضرب علامه (x)؛ ۲) د نفي، رد څرګندولو علامه، ناسم.

**چلېدل** (čaledál) مص.مت. ۱) جاري کېدل؛ ۲) ماشين روانېدل؛ ۳) پرله پسې دزې کېدل؛ ٤) استعمالېدل؛ ٥) تلل؛ ٦) ګوزاره کېدل.

**چلېکار** (čalekā́r) ص.نر.م. و ګ. چرېکار.

**چليګر** (čaligár) ص.نر.م. و ګ. چلباز.

**چم** (čam) نر.م. ۱) محله، کوڅه؛ ۲) دوکه، چل؛ ۳) پونه، شبنم؛ ٤) د تګ دول؛ ٥) غونډي، په څېر؛ ٦) طريقه؛ ۷) سلوک؛ ۸) برخه، څانګه؛ ۹) ختې چې لږ کېل ولري؛ ۱۰) کرچ، پېنډه؛ ۱۱) د غوښې يوه ټوټه؛ ۱۲) وابنه او وينسته چې په خپل منځ کې نښتي او تاو شوي وي.

**چماچار** (čamāčā́r) نر.م. چرچوری، چنجاری.

**چمانده** (čamāndá) ښځ.م. سپېرکونډکه، سپېرلکه خره مرغۍ، سوپوټکه.

**چمباز** (čambā́z) ص.نر.م. چلباز، ټګ، فريبګر.

**چمبر** (čambár) نر.م. ۱) چنبر، د کلا چاردېوالي؛ ۲) چمبه، د پروېزي او چنوري حلقه.

**چمبړ** (čambáṛ) نر.م. رنګينه خمتا، ګلداره بيتې.

**چمبړخيال** (čambaṛxyā́l) نر.م. ۱) تره، تړی؛ ۲) لاسپلی، تېرې ته ورته؛ خو تور رنګه اوږه پلی دی چې په يوناني درملنه کې کارېږي.

**چمبړی** (čambaṛáy) نر.م. خيګ، شناز، د لامبو مشک، سنداری.

**چمبل** (čambál) نر.م. پېچک، کوله ولی، يو دول ژېړ تارونه دي چې په نباتاتو او ونو راتاوېږي.

**چمبول** (čamból) نر.م ۱) کوږ لوښی، چپټ لوښی ۲) د کوچنيانو يوه لوبه ده.

**چمبه** (čambá) ښځ.م ۱) پنجه، څپېړه؛ ۲) تمبل، دف، دريه؛ ۳) د توپې يا خولۍ غاړه.

**چمبه کښه** (čambakáṣa) ښځ.م. پنجه کښه، دستکی؛ د تناره يو ډول اوږده ډوډۍ ده.

**چمبی** (čambáy) نر.م. ۱) د غاړې گروه، د گروېې هډوکی؛ ۲) چمبر، چارديوالي، کلا.

**چمبړک** (čamberák) نر.م. د مابنام چکالی، د مابنام شکلکی، چرمي شمبرک.

**چمبړه** (čamberá) ښځ.م. چوسی، چشی، د تناسلي آلت هغه پوستکی چې د سنت کېدو پر وخت ځني پرې کېږي.

**چمبېل** (čambél) نر.م. چمبېلي، يو ډول خوشبويه گل دی چې ژېړ او سپين گلان کوي.

**چمتاره** (čamtārá) ښځ.. مو. يو ډول سرنده ده.

**چمتو** (čamtū́) ص.نب. تيار، اماده او تکړه.

**چمتووالی** (čamtūwā́lay) نر.م. تياري، امادگي، اماده توب.

**چمته** (čamtá) ښځ.م. ۱) دبه، کلپی، د باروتو اېښودلو لوښی؛ ۲) تيلي، کڅوړه، مياني؛ ۳) د فقيرانو طبراق.

**چمتی** (čamtáy) نر.م. متی، سری، د ستنې برغولی، هغه پلن لرگی چې د ستنې او بش ترمنځ وي.

**چمته** (čəmtá) ښځ.م. ۱) دسپنه؛ ۲) اورلږونی.

**چمجن** (čamján) ص. نر.م. ۱) چينجن، چينجي وهلی؛ ۲) اوررست، پوده، خوسا، توس.

**چمجی** (čamjáy) نر.م.، و گ. چينجی.

**چمچ** (čamač) نر.م. چمچه، څمڅه، چمچی.

**چمچالو** (čamčālū́) نر.م. چمچه لغزی، يو ډول مرغی ده چې په اوبو کې گرځي.

**چمچړی** (čamčaráy) ښځ.م. شوړشوړی، سرسری داورلوبې اوږد شی.

**چمچک** (čamčák) نر.م. تلی، د موسيقۍ آله ده.

**چمچکی** (čamčakáy) ښځ.م. کربوری، مارخوری.

**چمچلغی** (čamčalğáy) نر.م. د اوبو يو ډول مرغی ده چې چينجي خوري يې.

**چمچلی** (čamčaláy) نر.م. ۱) چرخولک، گډوونی، څرخندوکی؛ ۲) بانه گير؛ ۳) بازينگر هلک.

**چمچمار** (čamčamā́r) نر.م. کپچه مار.

**چمچوری** (čamčū́ray) نر.م. تمبلوټ، ډولچه، ډولی، اوگردان.

**چمچوری** (čamčūráy) ښځ.م ۱) چمچی، چمچه، وروکې څمڅې؛ ۲) څمڅکی، د چونگښې زمنګی.

**چمچه** (čamčá) ښځ.م. و گ. څمڅې.

**چمړدی** (čamardáy) نر.م. د شولو د پايکو د منځ تيرکی، هغه لرگي سر چې شولې تکوي.

**چمړه** (čamṛá) ښځ.م. ۱) څرمن، چرم؛ ۲) توته، توکړ؛ له بل شي څخه رابېل شوی غټه توته.

**چمغټ** (čamğát) نر.م. چنغړک، ممغړک، غرندی، چينغړک.

**چمغړک** (čamgarák) نر.م. ۱) مړی، د مړی هډوکی؛ ۲) چنغړک، چينغړک.

**چمک** (čamák) نر.م. غلا، بربنين، غلبېدنه.

**چمکار** (čamakā́r) ص.نر.م. غلاند، غلبېدونکی، بربنېدونکی، چمکدار، چرکېدونکی.

**چمکلي** (čamkalí) ښځ.م. د بنځو بوه گانه ده.

**چمکنی** (čamkanáy) ښځ.م. زري پڼې، هغه موچنې يا پڼې چې پر مخ يې زر تار او وربښم کار شوي وي.

**چم گاونډ** (čamgāwánd) نر. م. ۱) همسايگي، گاونډيتوب؛ ۲) همسايه، گاونډي.

**چمگر** (čamgár) ص. نر.م. ج. تگ، چلباز.

**چمن** (čamán) نر.م. (ج. چمنونه) هغه اوار ميدان چې وابښه او گبل په کې راشنه وي.

**چمنډ** (čamánd) ص. نر.م. چاغ، شلند، مزی.

**چمني** (čamaní) ص. نب. د چمن، د چمن اړوند.

**چموخم** (čamoxám) نر.م. ۱) موزون تګ، په ناز تلنه، برابره تلنه؛ ۲) چم، چل، تګې.

**چموسه** (čamosá) ښځ.م. سوګلې، د خامې یا اومې څرمنې بوټ یا پنه.

**چموکی** (čam ūkáy) ص. نر.م. چمباز، تګ.

**چمه** (čamá) ښځ.م. ۱) بدخویه ښځه؛ ۲) ډبره، کاڼی، تیږه، غرمه.

**چمیار** (čamyā́r) نر.م. موچي، څمیار.

**چمیکی** (čamíkay) نر.م. چرګوری، چرګوټی.

**چنار** (činā́r) نر.م. چینار، څنار، یو ډول ونه ده.

**چناو** (čanā́w) نر.م. د اوبو سر، د اوبو سرچې په ویالې کې راځي.

**چنباګل** (čanbāgwál) نر.م. یو ډول سپین او ژېړ رنګی ګل دی.

**چنبر** (čanbár) نر.م. و.ګ. چمبې.

**چنج** (čunj) نر.م. کرکه، نفرت.

**چنجری** (čanjaráy) ښځ.م. زرکه، یو ډول مرغۍ ده

**چنجری** (čanjáray) نر.م. تنزری، څنزري.

**چنجن** (činján) ص. نر.م. ۱) چینجن، چینجو وهلی؛ ۲) مضر، جنجالي.

**چنجنتوب** (činjantób) نر.م. ۱) چنجنتیا، خوسا توب، چینجنوالی؛ ۲) په خبره کې خبره پیدا کول، د مچ نه کوچ ویستل.

**چنجنول** (činjanawál) مص. مت. ۱) چینجول، په چینجو وهل؛ ۲) مج. په خبره کې خبره پیدا کول، خبره خرابول.

**چنجنه ډبره** (činjanadabará) ښځ.م. یو ډول سوری سوری کاڼی دی چې اوبه کوغونډې یوه [illegible] څخه خپرېږي.

**چنجنېدل** (činjanedə́l) مص. ل. ۱) چینجن کېدل، چینجنېدل؛ ۲) مج. د کومې موضوع یا خبرې اوږدېدل او خرابېدل.

**چنجوغی** (činjuğáy) نر.م. یوه مېوه ده چې سور رنګ لري او خوند یې خوږ دی.

**چنجول** (čunjawə́l) مص. مت. کرکه کول، نفرت پیدا کول، زړه تورول.

**چنجولی** (čunjawə́lay) مف. نر.م. زړه ورتور کړی، متنفر کړی.

**چنجوی** (čanjúy) نر.م. دري غابښیزه آله ده چې کوچیان پښېره ډوډۍ پرې مېده کوي.

**چنجی** (činjáy) نر.م. چینجی، یو ډول حشره ده.

**چنجېدل** (čunjedə́l) مص. ل. زړه تورېدل، خوا ګرځېدل، کرکه او نفرت پیدا کېدل

**چنچني** (čančanáy) ښځ.م. یو ډول مرغۍ ده.

**چندرچېرې** (čandarčeré) نر.م. د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**چندخ** (čindáx) نر.م. غټه چونګښه، چنګښ.

**چندرکونس** (čandarkáwns) نر.م. هو یو کونس دی مګر په شاستر او پخوانیو متونو کې نه لیدل کېږي.

**چندرو**(۱) (čandrú) نر.م. پرخه، پونې، شبنم.

**چندرو**(۲) (čindró) ښځ.م. ۱) چیتی، جُز بازي، د کوچنیانو یوه لوبه ده؛ ۲) په یوه پښه تلنه.

**چندروکی** (čandrū́kay) نر.م. چنکی، چتی، چترکی، چورندک، یوه وړه مرغۍ ده.

**چندری** (čindráy) ښځ.م. ۱) چندرو، په یوه پښه ګوډ ګوډ تلنه؛ ۲) موخی، چندر، چیتی.

**چندری** (čandráy) نر.م. د ښځې تناسلي آلت.

**چندر** (čandár) نر.م. صندل، چندن، یو ډول ونه ده.

**چندل** (čandál) نر.م. ګرد ګرد تلونکی، پر یوه پښه تلونکی، پر ځرندي تلونکی.

**چندنی** (čandnáy) ښځ.م. ۱) سپینه رڼجایي؛ ۲) ترنګ ،شرنګ (درباب)، د ډول ډب.

**چندن هار** (čandanhā́r) نر.م. چندنهار، چندنار، امیل غوندې یو ډول ګاڼه ده چې غاړې ته اچول کیږي او یو لاس ترې ویستل کیږي.

**چندوری** (čandúray) نر.م. کودوری، توکر، کودنی، کودری، کودی.

**چندوله** (čandolá) ښځ.م. و.ګ. جینی.

**چندونی** (čandūnáy) نر.م. د غوړ پخکی، د غوړ نرمی، د غوړ نرمه، د غوړ پوښکی.

**چنده** (čandá) ښځ.م.(ج.چندې) ۱) چانده، بسپنه، هغه پیسې چې د یوه کار لپاره له خلکو څخه راټولیږي؛ ۲) د ورځپاڼې، مجلې کلنی یا شپږ میاشتنی ګډون.

**چندی** (čánday) نر.م. (ج. چندیان) شاعر.

**چنډال** (čandā́l) ص. نر.م. ۱) چوړی، چواړی، صفایي کوونکی؛ ۲) غریب؛ ۳) بې همته؛ ۴) له ټولو حقوقو څخه محروم؛ ۵) بې اولاده؛ ۶) بې روزګاره.

**چنډالتوب** (čandāltób) نر.م. ۱) چوړی توب؛ ۲) غریبي؛ ۳) بې همتي؛ ۴) بېکاري؛ ۵) محرومیت؛ ۶) اولاد نه لرنه.

**چنډاول** (čandawə́l) نر.م. چنداول، د لښکر هغه ټولۍ چې تر ټولو وروسته وي.

**چنډت** (čandát) ص. نر.م. خوار غریب، مفلس.

**چنډخه** (čindaxá) ښځ.م. چړنګینه، جنګړه.

**چنډک** (čandák) نر.م. ۱) شنډک، غوک، د کوچنیانو یو راز لوبه ده؛ ۲) تکره.

**چنډن** (čandə́n) نر.م. و.ګ. چنډړ.

**چنډو** (čandū́) نر.م. غمزه، چانډو، اوبو کې پاخه شوی تریاک یا اپیم چې بیا وڅکول شي.

**چنډوباز** (čandūbā́z) ص.نر.م. د چنډو نشه کوونکی

**چنډوکه** (čandūká) ښځ.م. یو ډول بوټی دی.

**چنډه** (čandá) ښځ.م. (ج. چنډې) ۱) توکر، توټه، حصه، توکره؛ ۲) تراژه، قاش، دره.

**چنغاله** (čingālá) ښځ.م. چنغله، کسوزده شوې.

**چنغرک** (čangarák) نر.م کارکورتک، قانقورتک.

**چنغول** (čangól) نر.م. (ج. چنغاله) نامزاد.

**چنګ** (čang) نر.م. ۱) د فوکلوري موسیقۍ یوه اوسپنیزه آله ده چې منځنی برخه یې فنري جوړښت لري؛ ۲) د موسیقۍ ۲۴ تاریزه آله ده؛ ۳) له ۴۰ ماترو څخه جوړ د یوه تال نوم دی؛ ۴) چنګک؛ ۵) په پنجه کې، ګیر.

**چنګابښ** (ču,angáṣ) نر.م. چونګابښ، کونیکبر، خارچنګ، سرطان.

**چنګال** (čangā́l) نر.م. منګول، منګوله، پنجه.

**چنګ چنګ** (čangčíng) نر.م. چونګ چونګ، ستمی، زګیروی.

**چنګ په چنګ** (čangpačáng) ص. نر.م.ج. ګډوډ، پریشان، ابتر.

**چنګړ** (čangáṛ) ص.نر.م.(ج. چنګړان) ۱) بدخوید، بدمعامله؛ ۲) موسلی، مسلی.

**چنګړی** (čangaṛáy) نر.م. چینډری، چنګور، چندرو، چیتی، د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**چنګښ** (čangaṣ) نر.م. ۱) چونګابښ، چینګښ، غټ چنډخ؛ ۲) چتکی، چتی، چترو، چندولی؛ ۳) و.ګ. چنګابښ.

**چنګل** (čangúl) نر.م. د ځمکې هغه ټوټه چې د پنځلسو جریبو سره معادله وي.

**چنګل بازی** (čangulbāzáy) ښځ.م. جغل بازي.

**چنګن** (čəngán) ص. نـر.م. ۱) ژرنـدوکی، ژر په ژړا کېدونکی؛ ۲) ترن؛ ۳) بخیل، شوم.

**چنګو** (čangú) نر.م. یو ډول سارانی مرغه دی.

**چنګوټی** (čangóṭay) نـر.م. ۱) چنـګـوری؛ ۲) دځناور بچی؛ ۳) ووړکی ماشوم.

**چنګوری** (čanguŕay) نر.م. ترټني، دډبرې توټه د تیرې توټه، د بم توټه یا پارچه.

**چنګوړ** (čangoṛ) نر.م. چندري، چیتـی، موخی، د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**چنګوري** (čangurí) نر.م. د شولو ګېډی، د شولو ختی، د شولو ښېتی.

**چنګول** (čingawə́l) مص. مت. و ګ. چینګول.

**چنګولي** (čangulí) ښځ.م. د غنمو ګـېډی، د غنمو ختی، د غنمو ستری.

**چنګی** (čangə́y) ښځ.م. ۱) چندری؛ ۲) یـو ډول ووړه سپېره چنچنه ده.

**چنګی** (čangáy) ص. نر.م. چغر، بهنګی، بهنګا، کوږسترګی، چغرسترګی.

**چنګیتاز** (čangitáz) نر.م. ۱) کوښتبل، لپ ښپ؛ ۲) ملخ غوندې یوه حشره ده.

**چنګېدل** (čingedə́l) مص. ل. ژړل، د ژړا اواز.

**چنماری** (čanmārə́y) ښځ.م. و ګ. چاندماري.

**چنوسکی** (čanū́skay) ص.نر.م. بخیل، کنجوس

**چنوغزه** (čanoǧzá) ښځ.م. مچلوغزه، مچنوغزه.

**چنه** (čəná) ښځ.م. ۱) د دېـوال یو اړخ؛ ۲) مرسته؛ ۳) مج. د ګارندي په ډول لـه بل چا سـره ژوند تېـرول؛ ٤) د پلوروونکي سـره د بیـې د کښته راوستلو لپاره خبرې؛ ٥) د خولې لاندنی ژامه.

**چنی** (čanáy) نر.م. ۱) هغه آس چې درې رنګه لري؛ ۲) کاسه، ترلی، کونډی.

**چنی** (čanə́y) ښځ.م. شبنم، زمرین، سپینه پرخه.

**چڼ**[1] (čaṇ) نر.م. ۱) ګوړ، للون، خېشاوه؛ ۲) ص. پاک، چاڼ؛ ۳) هغه لښتې چې د کرکې د تیرانو د پاسه اچول کېږي؛ ٤) پنبه په ندافي وهل؛ ٥) انتخاب؛ ٦) فیلتروونه؛ ۷) بې غشه کوند.

**چڼاخه** (čaṇā́xa) ښځ.م. د هـډوکـو درد، د بندونو درد، د اندامونو درد، روماتیزم.

**چڼاسک** (čaṇāsák) ص.نر.م. چنیاسن، چناسن، هغه څه چې پوپنک او چنیاسې پې کړې وي.

**چڼاسکه** (čaṇāská) ښځ.م. ۱) یو بوټی دی چې ګل یې د بنفشې ګل تـه ورته دی؛ ۲) چنیاسه، چنیاسه، چنوسی، پوپنک.

**چڼاشي** (čaṇāší) نر.م. کروپی، ککړی، بوګری.

**چڼ چڼ** (čaṇčáṇ) نر.م. د چرچڼې (چنچنې) اواز.

**چڼچڼ** (čənčə́n) نر.م. چرچڼ، یو ډول مرغی ده.

**چڼچڼک** (čaṇčanák) نر.م. تور غاړ، یوه مرغی ده چې توره غاړه لري.

**چڼچڼه** (čaṇčaná) ښځ.م. و ګ. چرچڼه.

**چڼکاو** (čaṇkā́w) نر.م. چـړکاو، اوباشي، د اوبو پړوهل، څمکه اوباشي کول.

**چڼکاوول** (čaṇkāwawə́l) مص. مت. اوباشي، د اوبو پړ وهل، چڼکاو کول، اوبه ترمکه کول

**چڼکاوېدل** (čaṇkāwedə́l) مص. ل. چړکاوېدل، چړقاوېدل، اوبه ترمه کېدل، اوباشي کېدل.

**چڼل** (čaṇál) مص.مت. ۱) چوڼل، چڼ کول، صافول غلبېلول؛ ۲) تولول، سره کول.

**چڼول** (čanawə́l) مص. مت. ۱) ګوړول، خېشاوه کول؛ ۲) پاکول، چاڼ کـول؛ ۳) مـالـوچ ندفت کول؛ ٤) چوڼ کول، انتخابول.

**چڼونی** (čaṇunáy) نـر.م. ۱) پـرویزی، چڼوونی؛ ۲) چاڼ کوونی، پاکوونی، غلبېلوونی.

**چڼه** (čaṇa) ښځ.م. نخود، یو ډول حبوب دی.

**چنی** (čanáy) نبغ.م. د اوسپنې پانه.

**چنی** (čanáy) نر.م. ۱) د جال وړه توکری؛ ۲) دری ګوتیزه واره سوري؛ ۳) چېري، طالب؛ ٤) دشپلیو غروندی، د پنو غروندی.

**چنیا** (čunyá) نبغ.م. چونیا، چونیایی رنګ؛ بنفشه یی رنګ.

**چنیاتوب** (čunyātób) نر.م. چونیايي رنګ، چونیايي رنګ درلودنه.

**چنیاسن** (čanyāsán) ص.نر.م. چنوسی، هغه څه چې پوینک یې کړی وي.

**چنیاسه** (čanyāsá) نبغ.م. یو ډول نری توکر، یو ډول چنجره نری کپړه.

**چنېدل** (čanedə́l) مص.ل. ۱) ګوربدل؛ ۲) صفا کېدل، غلبېلېدل؛ ۳) مالوچ ډنډت کېدل؛ ٤) انتخابېدل؛ ٥) چونېدل، چاڼ کېدل.

**چو**[1] (čaw) نر.م. ۱) چاک، چاود، درز؛ ۲) د دوو غرونو ترمنځ تنګه لاره.

**چو**[2] (ču) نر.م. ۱) چف، دم؛ ۲) د آس یا غوایي د روانولو اواز.

**چو**[3] (čo) اد. ۱) خود، لیکن، مګر؛ ۲) خپ اوبس، چواوبس؛ ٤) بندېز، ایسارتیا، ګیروالی.

**چوار** (čawā́r) نر.م. للونه، غوړند، کوری.

**چوارول** (čawārawə́l) مص.مت. غوړول، للول، کوری کول، غوړندول.

**چواره** (čuwārá) نبغ.م. (ج. چواري) خرما، وچه کجوره؛ یو ډول میوه ده.

**چواري** (čuwā́ri) نبغ.م. سوری شوي کجوره ده چې په تارکې اچول کېږي او د ښتلو لپاره یې د ماشوم پر غاړه کې غوړندوي.

**چوارېدل** (čawāredə́l) مص.ل. غوړندېدل، غوړېدل، کوری کېدل.

**چواړی** (čuwāṛáy) ص.نر.م. ۱) ملی، موسلی، نورمخی؛ ۲) خاکروب؛ ۳) خوسا، ناپاک.

**چوباره** (čobārá) نبغ.م. (ج. چوبارې) بالاخانه، د کوټې د پاسه بله کوټه.

**چوبړن** (čobṛán) ص.نر.م. لوچک، جاهل، چوپن.

**چوپ** (čup) ص.نر.م. ج. چپ، غلی، خاموش.

**چوپاتکه** (čopātə́ka) نبغ.م. (ج. چوپاتکې) کټولی، د انګرو د راټولولو آله.

**چوپار** (čopā́r) نر.م. (ج. چوپارونه) ۱) چوپال، چوپار، څېرۍ، ساله؛ ۲) د غونډېدو ځای.

**چوپان ګرمک** (čopāngarmák) نر.م. یو ځنګلي بوټي دی.

**چوپتیا** (čoptyá) نبغ.م. غلی توب، چوپتوب، چوپوالی.

**چوپته** (čuptá) نبغ.م. هغه لرګي چې د دېوال د کلکولو لپاره په هره پخښه لګول کېږي.

**چوپر** (čupár) ص.نر.م. برګ، دوه رنګی، ابلق.

**چوپړ** (č(o,u)páṛ) نر.م. ۱) خدمت، نوکري، کار، زحمت؛ ۲) یو ډول لوبه.

**چوپړن** (čupṛán) ص.نر.م. چخن، چوخړن، چخړن، هغه څوک چې سترګې یې چخړي او اوښکې کوي.

**چوپړوال** (čopaṛwā́l) نر.م. خدمتګار، نوکر.

**چوپړه** (čopáṛa) نبغ.م. زړه پنه، زړه موچنه، چپړه.

**چوپړی** (čopṛáy) نر.م. خدمتګار، خادم، نوکر.

**چوپړی** (čopṛáy) نبغ.م. ۱) اوبری، شړومبی، چوبری؛ ۲) خونکی، شپېر، کوټخه، شپېره.

**چوپل** (čupə́l) مص.مت. چوپول، زبېښل، رودل.

**چوپلی** (čupə́lay) مف.نر.م. زبېښلی، رودلی، چیپلی، چوپولی.

**چوپنه** (čupə́na) نبغ.م. ...

**چوپني** (čupanay) نر.م. پوچکه، دصابون پوچک يا د کورتو منبوني، کنبکرى.

**چوپونکى** (čupṹnkay) فا. نـر.م. زيهنبونکى، رودونکى، چپوونکى.

**چوپڼى** (čupaṇáy) نـر.م. هغه پوست شى چې د ماشوم د غابنو په کېدلو کې مرسته کوي.

**چوپڼى** (čupanáy) ښځ.م. چاکلېټ.

**چوپه چوپيا** (čopačopyā́) ښځ.م. کراره کراري، چوپه چوپتيا.

**چوپېدل** (čupedə́l) مص. ل. ارامېدل، کرارېدل، غلي کېدل، خاموشه کېدل.

**چوپېر** (čawpér) ق. و گ. چاپېر.

**چوت** (čwat) ص. نر.م. ۱) اوچت، لـوړ؛ ۲) تېز، ځالاکه، متى، وندى.

**چوتاله** (čawtā́la) نر.م. مو. ددوولسو ماترو تال.

**چوتانګى** (čutangáy) بـښځ.م. د اوبن د کـتـې فلزي کړى، د اوبن د زين فلزي کړى.

**چوتار** (čawtā́r) نر.م. (ج. چـوتاره) ۱) يــوډول ساز؛ ۲) اوږده خبره؛ ۳) چارسوتي توکر.

**چوتره** (ču(wa)trá) ښځ.م. صوفه، سوېه، ډبه.

**چوتى** (č(o,u)táy) نر.م. ۱) چوتى، نيکر، لنډکى پرتوگ؛ ۲) د اوبن د بار ترلو رسى.

**چوتيا** (čutyā́) ص. ښځ.م. ۱) بې اتبـاره، ناکاره؛ ۲) گاندو، مفعول.

**چوتياتوب** (čutyātób) نـر.م. ۱) ناکاره تـوب، بې اتباري؛ ۲) گانډوتوب، مفعولتوب.

**چوټ** (čut) نر.م. (ج. چـوټونه) ۱) چيټ، يوډول توکر دى؛ ۲) اندېښنه؛ ۳) تاوان؛ ٤) گـوزار؛ ٥) اعتراض؛ ٥) ص. نر.م. بس، پوره.

**چوټ انداز** (čotandā́z) ص. نر.م. قياس، اټکل انداز، تخمين، اټکلي، توکلي.

**چوټول** (čoṭawə́l) مص. مت. ۱) چوټ کول، ورل، ټنبټول؛ ۲) غلاکول؛ ۳) درنول (د پور).

**چوټه**[1] (čóṭa) ښځ.م. ۱) چاره، علاج؛ ۲) پرله پسې کارکونه.

**چوټه**[2] (čawaṭá) ښځ.م. څپلى، کپړي، چپلي.

**چوټي** (čoṭi) ص. نب. ۱) څېټي، چوټي، د ښځې د سر وېښتان چې اوبدلي پېړي؛ ۲) ښځ.م. د ښځې د سر اوږده څنې؛ ۳) رخصتي.

**چوټېدل** (čoṭedə́l) مـص. ل. ۱) پـوره کېـدل، په مقابله کې برابرېدل؛ ۲) ټنبټول کېدل؛ ۳) بارېدل، درنېدل (د پور).

**چوچ** (čoč) نر.م. رسم، رواج، دود، دستور.

**چوچاړى** (čočāṛáy) نر.م. ټاپو، جزيره.

**چوچک** (čučák) نر.م. ۱) چـرگوتى، چرگـوړى؛ ۲) ورانکارى هلک، شوخ هلک.

**چوچنى** (čočanáy) نر.م. و گ. چوخنى.

**چوچوړى** (čučuṛáy) نر.م. شينى، شونى، کونى د مرغيو او چرگانو کنه.

**چوچوڼى** (čučuṇáy) نر.م. چرگوړى، چرگوتى.

**چوچى** (čučáy) نر.م. ۱) چوچوڼى، چيچى، بچى؛ ۲) ص. نر.م. چوخـړن، چخن، هغه سـړى چې سترگې يې چوخنې کوي.

**چوچۍ** (čučə́y) ښځ.م. سارايي چرگ، کورمنک.

**چوخ**[1] (čox) ص. نر.م. کړوپ، مـلاتيتى، کوبى.

**چوخ**[2] (čux) نر.م. چخ، تومبنه، خنبونه، منډنه.

**چوخت** (čoxt) ص. نر.م. جوخت، پيوست، ورڅېرمه.

**چوخته** (čóxta) ښځ.م. ۱) گاره، سمڅـه، سمڅ؛ ۲) دوغله، غار، سوړه.

**چوخړکه** (čuxṛáka) ښځ.م. سـپنگور، يوډول اغزن بوټى دى.

**چوخره** (čuxṛá) ښځ.م. و ګ. چخره.

**چوخړي** (čuxṛí) نر.ج. چخې، چخړې، چوخنې.

**چوخښکی** (čuxṣkáy) نر.م. د سترګې هغه کونج چې د غوږ و خواته دی.

**چوخکه** (čoxáka) ښځ.م. چخله، چوخله، چوکه.

**چوخل** (čuxál) نر.م. چوغل، سیکي، یخ مالک، د یخ مالک آله، چوغل، ښوینده آله.

**چوخلی** (čuxaláy) ښځ.م. جګه خولۍ (توپۍ).

**چوخلی** (čuxaláy) نر.م. تېره لرګی دی چې جوار وریاندې سپینوي.

**چوخ مخی** (čoxmáxay) ص. نر.م. چک مخی، بر ګ مخی، چیچکي.

**چوخنی** (čúxnay) ص.نر.م. و ګ. چوچی.

**چوخنه** (čūxná) ښځ.م. و ګ. چخره.

**چوخنی** (čuxnáy) نر.م. چخړی، چوخړی.

**چوخول**(۱) (čuxawə́l) مص.مت. چوخ کول، چوکه کول، دخیبل، سوخول، سوغول.

**چوخول**(۲) (čoxawə́l) مص.مت. کږول، راتیټول، کږوبول.

**چوخه** (čoxá) ښځ.م. ۱) چوغه، شوقه، قبا؛ پشمي چینه؛ ۲) کوږوالی، خموالی؛ ۳) د څه شي د اخیستلو لپاره اوږه ورکونه.

**چوخی** (čuxáy) ښځ.م. چوکه، چیکه، تېره لښته ده چې د غوایانو د شړلو لپاره استعمالېږي.

**چوخی** (čūxáy) ص. نر.م. ۱) شاتیټ، شاکوږی؛ ۲) چیچکي، چخمخی، چوخی، چخن مخی.

**چوخي چوخي** (čūxičūxí) ص. نب. داغ داغ، تپ تپ، خاپ خاپ.

**چوخېدل**(۱) (čoxedə́l) مص.ل. تیټېدل، کږوېدل.

**چوخېدل**(۲) (čuxedə́l) مص.ل. چوکه کېدل، ... شوخېدل، سوغېدل.

**چودل** (č(aw,u)də́l) مص.ل. و ګ. چاودل.

**چودري** (čawdarí) ص. نر.م. ۱) مشر، سرکرده؛ ۲) معتبر؛ ۳) زمیندار.

**چور** (čūr) ص. نر.م. ۱) تالا، لوټ؛ ۲) ریزمریز، توتې توتې؛ ۳) بالکل، بېخي؛ ٤) نر.م. تان، لوټمار؛ ٥) هغه سوری چې د اوبو په بند کې پیدا شي؛ ٦) چوری، چینګکې، تېره تیره ده چې شپانه د چړې کار ترې اخلي؛ ۷) دره؛ ۸) دوره، پوډر، رش.

**چورباز** (čūrbā́z) ص. نر.م. بچه باز.

**چوربل** (čurbál) نر.م. ۱) چربل، د وزې له وړغنو شخه جوړ شوی ترسبری یا پړی؛ ۲) له وړغنو او تارونو شخه جوړ د آس جلو.

**چوربور** (čorbór) ص.نر.م. مغرور، کاکه.

**چورت** (čurt) نر.م. ۱) چرت، فکر، اندېښنه؛ ۲) یوه خوله نسوار.

**چورتک** (čurták) نر.م. یو ډول نبات دی.

**چورتي** (čurtí) ص. نب. اندېښمن، پریشان.

**چورټ** (čuráṭ) نر.م. چرټ، یو ډول سګرېټ دي.

**چورچورک** (čūrčūrák) نر.م. چرچرک، کیږی؛ یو ډول حشره ده

**چوررنګ** (čūrráng) ص. نر.م. نری، چپلیت.

**چورلټ** (čūrláṭ) ق. بالکل، بېخي، سکټ، سراسر.

**چورلک** (čūrlák) نر.م. څرخ، پېر، تاو، دور.

**چورلکه** (čūrláka) ښځ.م. ۱) د ښپې پخکی (مخکنی برخه) او پسکی (وروستنی برخه)؛ ۲) دلرګي څرخ؛ ۳) څرخي الوتکه، هیلیکوپتر.

**چورلکی** (čūrlúkay) نر.م. ۱) چورلکه، د ښپې چورلکه؛ ۲) د ښځې د تناسلي آلت ځینځکی.

**چورلنده** (čūrlánda) ص.نب. ګـ ځېدونکی، ... شیار، څرخېدونکی، تاوېدونکی.

چورلندی (čurlandáy) نر.م. لاټو، گـرځندی،
چورلندی، څرخندوکی، د لوبې یوه آله ده.

چورلول (čurlawə́l) مص.مت ۱) څرخول، تاوول،
دور ورکول؛ ۲) گډول، نڅول.

چورله (čūrlá) ښـځ.م. ۱) داوبـو مـوری، د اوبو
ورخ؛ ۲) سولولی غوز (اکور).

چورلی (čūrláy) نر.م. (ج.چورلي) ۱) دماشين
څرخ؛ ۲) څرخندوکی، لاټو، څرخني، چورلندی
۳) غوز، متیک، اکور.

چورلی (čūrláy) ښځ.م. شپیلک، شپیلی.

چورلیځ (čūrlíj́)؟ ا. محـور، منځنی، غونډ کربښ،
څرخ لیکه، آسه، میل څرخ، مدار.

چورلېځی (čūrleǰáy) نر.م. میل، محوري میل،
هغه میل چې ماشین باندې څرخي.

چورلېدل (čūrledə́l) مص.ل. ۱) څـرخ خـورل،
تاوېدل، څرخېدل؛ ۲) گډېدل، نڅېدل.

چورلی غرب (čūrlayğráb) نر.م. ماشینگر،
ماشیندار، یو ډول رسله ده.

چورمچور (čūrmačū́r) ص.نر.م. ریـز مـریـز،
زرې زرې، توټې توټې، ببخي مات.

چورن (čūrán) نر.م. ۱) تنزرکی، د اوبو موری؛
۲) کپه، کپ، تاک؛ یو خوراک میده دارو.

چورندک (čūrandák) نـر.م. (ج. چـورندکان)
چتکی، چتی، چترکی، کوچنی مرغی ده.

چورنگ (čūráng) نر.م. ۱) په یوه وار د ښاروبو
ښیښې پرې کونه؛ ۲) تېغ، توره؛ ۳) زخم، پرهار.

چورنگی (čūrangáy) نر.م. یو ډول مرز دی.

چوره (č(o,u)rá) ص. نب. ۱) فتق، هغه سړی چې
دخوټو پاړسوب په ناروغی اخته وي؛ ۲) ص.
نر.م. چورې، خوفناکه دره؛ ۳) ښـځ.م. بوره،
شکره؛ ٤) بودر، رش.

چوړی(۱) (čawṛáy) ښځ.م. مېچ شړونی.

چـوری(۲) (čoráy) ښـځ.م. ۱) ښـکلې جینۍ؛
۲) محبوبا، معشـوقه؛ ۳) پ. ک. مجلس
پیغله، هغه پیغله چې مجلس تودوي.

چوري (čurí) ښځ.م. مالیده، یو ډول خواږه دي.

چوړی (čūṛáy) نر.م ۱) تونبه؛ ۲) توبره؛ ۳) ذکر،
د نارینه تناسلي آله؛ ۲) گډېدونکی.

چوړ(۱) (čūr) نر.م. ۱) شړپهار؛ د اوبو د راتویېدلو
اواز؛ ۲) هغه درز چې په لـرگي کې په څولي یا
پانه باندې شوی وي؛ ٤) کړی، غوراشه.

چوړ(۲) (čawṛ) نـر.م. ۱) ښیخ، جـدر، چندر، فتل؛
۲) ص. نر.م. ج. تباه، برباد.

چوړا (čūṛá) نر.م.وبښی، بنگړی، گوجره، چوړی.

چوړاغ (čūṛā́ğ) نر.م. دکاني چاو، د اوبو لاره.

چوړچوړک (čurčurák) نر.م. کمکی هلک، ورکی
ماشوم، ورکوټی، کوچنی.

چوړک (čūṛák) نر.م ۱) قلف، کولپ؛ ۲) د دروازې
ارم، تمبه او توماچو.

چوړکی (č(o,u)ṛkáy) ښځ.م. چوړکی، روه چاره.

چوړگه (čūṛgá) ښځ.م. ۱) سمڅ، اورده سوړا؛
۲) دروازه یو څه خلاص.

چوړو (čūṛū́) نر.م. تبخک، شـپخـدو، چـوړی، یو
ډول سپېره مرغه دی چې اوږده لکی لري.

چوړول(۱) (čawṛawə́l) مص.مت. تبـاه کـول،
بربادول، ورانول، قتلول، پوپنا کول.

چوړول(۲) (čūṛawə́l) مص. مت ۱) شوړول، چړول؛
۲) بېول، جاري کول.

چوړهار (čūṛahā́r) نر.م. شوړهار، شړپهار.

چوړی(۱) (čūṛáy) ص.نر.م. ۱) چـوړوری، بنگړی؛
۲) هغه سړی چې د پانسي کولـو پر وخت کې
کوهي څرخ تاووي؛ ۳) و ک. چوړل.

**چوړېدل**(۱) (čawṛedә́l) مص. ل. تباه کېدل، برباد‌بدل، ورانېدل، پوپنا کېدل، قتلېدل.

**چوړېدل**(۲) (čuṛedә́l) مص.ل. ۱) چړېدل؛ ۲) جاري کېدل، بهېدل.

**چوړېل** (čuṛayә́l) مص.مت. سرېښول، نښلول.

**چوړېلی** (čuṛayә́lay) مف. نر.م. سرېښ کړی، نښلولی، مښلولی، ښخ کړی.

**چوړېنه** (čuṛayә́na) ښځ.م. سرېښونه، مښلونه.

**چوز** (čūz) نر.م. یو کلن باز.

**چوزه**(۱) (čūza) ښځ.م. ښایسته ښځه.

**چوزه**(۲) (čawzá) ښځ.م. چرګوړی، چرګوتی.

**چوزی** (čūzay) ص. نر.م. ۱) کاغذي، چغچي، نازک، چغزي؛ ۲) نر.م. چرګوړی؛ ۳) دوزي بېلوی.

**چوس** (čūs) ص.نر.م. ۱) بې ارزښته، بې قیمته شی؛ ۲) د ښاروي لرې او کولمې؛ ۳) ص. چوسک، خسیس سړی.

**چوسار** (čawsár) نر.م. یو ډول سوهان.

**چوستی** (čūstáy) نر.م ۱) د ښاروو لرې او کولمې؛ ۲) د نس برنغ یا پرده.

**چوس خور** (čūsxór) ص.نر.م. ۱) چوسکن، بخیل؛ ۲) ور سترګی، اروا ورې.

**چوسک** (čūsák) نر.م. چوس، ، په یوه شي پسې ګرځېدنه، په یوه شي پسې پلټنه

**چوسکن** (čūskán) ص. نر.م. و ګ. چوس خور.

**چوسکنتوب** (čūskantób) نر.م. ۱) ور سترګي ۲) بخل، بخیلتوب، شوموالي.

**چوسکنېدل** (čuskanedә́l) مص. ل. اروا ورې کېدل، بخیل کېدل، شوم کېدل.

**چوسه** (čósa) ښځ.م. سستي، لټي، تنبلي.

**چوشی** (čošáy) ښځ.م. و ګ. چښکی.

**چوشک** (čošák) نر.م. ۱) ښېښه یي وړوکی بوتل دی چې شیدې په کې اچوي او کوچني یې روي؛ ۲) وړو پلاستیکي ساختمان چې هوا لري او ماشومان یې روي.

**چوښتی** (čūṣtay) نر.م. ۱) چوشتی، دمېږو او نورو ښاروېو غولانځه؛ ۲) ښوبڼکوړی.

**چوښکه** (čūṣka) ښځ.م. چوښکی، ښخکوړی، چښکوړی، سنت، کشکول، ښوبڼکوړی.

**چوغ** (čūğ) ص.نر.م. ۱) چوخ، کوږ، تیټ، کوږک، چوغی؛ ۲) تنګ.

**چوغالي** (čūğālay) نر.م. ۱) د اوښانو د تړلو ځای او تویله؛ ۲) د اوښانو بچي چې پر یوه ځای یې کړي وي؛ ۳) دورستو اوښو دوغل.

**چوغبوغ** (čūğbūğ) نر.م. چغ بغ، شور ځوږ.

**چوغړی** (čūğray) ص.نر.م. غوړېدلی، وېږ، سپرلی، سپرولی، سپهرلی.

**چوغ سترګی** (čūğstә́rgay) ص.نر.م. چغ سترګی، چپلغی، چنګ سترګی.

**چوغښکی** (čūğáṣkay) نر.م. د سترګې کونج، د سترګې هغه کونج چې د غوږ خواته وي.

**چوغک** (čūğák) نر.م. یو ډول نبات دی چې سره میوه نیسي او میوې ته یې جنجوغی وايي.

**چوغکه** (č(u,o)ğáka) ښځ.م. چرچڼه، مرغی.

**چوغکي** (čuğakí) ښځ.م. چوغلي، غمازي.

**چوغل** (čuğál) نر.م. ۱) چوخل، نخښک، دسکي آله؛ ۲) غماز، چوغلګر؛ ۲) غټ غلېل.

**چوغلي** (čuğlí) ښځ.م. غمازي، چوغلیګري، چوغلګري، شیطاني، خبره وړنه.

**چوغنه** (čuğána) ښځ.م. کوتی، دوغل، کوت.

**چوغول** (čuğawә́l) مص.مت. تیټول، کوږکول، ګرکول کږول، پټول.

**چوغه**(۱) (čuǧá) ښځ.م. قبا، چغه، شوقه، يو ډول چپنه ده.

**چوغه**(۲) (čoǧá) ښځ.م. ر.گ. چوخه(۲).

**چوغی** (čoǧáy) ص.نر.م. ۱) تيتيا، کوبی؛ هغه څرک چې ملا يې تيته وي؛ ۲) چوغ سترگی.

**چوغی سترگی** (čoǧaystə́rgay) ص.نر.م. وړې او کم ديد سترگی

**چوغېدل** (čūǧedə́l) مص. ل. پټېدل، کوږکېدل، کږکېدل، تيتېدل.

**چوف** (čuf) نر.م. چف، کوف، دم، دم پو کول.

**چوک**(۱) (čawk) نر.م. (ج. چوکونه) ۱) چارسو، د څلور لارو د تقاطع ځای؛ ۲) چونگ، حجره، ډېره؛ ۳) په طبعيت برابر کار، د زړه کار.

**چوک**(۲) (čūk) نر.م. ۱) يو سترگی، په يوه سترگه ړوند؛ ۲) پوتی، لږ څيز، ذره؛ ۳) کمی، زيان؛ ٤) ببوی، چتره، سولولې شوې ببوی.

**چوک**(۳) (čok) نر.م. ۱) په گونډو شوی اوبن؛ ۲) خسي شوی اوبن؛ ۳) ص. څوک.

**چوک**(٤) (čuwák) نر.م. کتی، دمايعاتو د اندازه کولو لښتې.

**چوکتار** (čukatā́r) نر.م. د چوکې مېخ، هغه مېخ چې په لښته کې کلک شوی او غوايي ورباندې چوکه کوي.

**چوک چوک** (čukčuk) ص. نر.م. ۱) لړ شان، ذره ذره، لږ لږ؛ ۲) اد. د هغه اواز تلفظ دی چې د ژبې د سر او پورتني تالو تر منځ د هوا له تېرېدو څخه راوځي چې د زړه سوي، افسوس پر وخت کې ايستل کېږي.

**چوکاټ** (čawkā́t) نر.م. ۱) قالب، دور، فريم؛ ۲) د دروازې هغه برخه چې پلې په کې نصب وي؛ ۳) حدود، محدود، تعين شوي شرايط.

**چوکاټي** (čawkātī́) ص.نب. د چوکاټ، چوکاټ ته منسوب، د چوکاټ اړوند.

**چوک چوکه** (čukčuká) ښځ.م. اوازه، اوازنگه.

**چوکر**(۱) (čokár) ص.نر.م. چاکر، نوکر، چوپړ.

**چوکر**(۲) (čūkár) نر.م. د څناور خوراک.

**چوکره** (čokrá) ص.نر.م. ۱) هلک، ماشوم، وروکی؛ ۲) ساتلی هلک؛ ۳) ډېل تابع.

**چوکره توب** (čokratób) نر.م. هلکتوب، د چور باز سري هلک يا ورکی پاتي کېدل.

**چوکړی** (čūkŕáy) ښځ.م. چوکړی، د چلويري ساگ، يو ډول سابه دي.

**چوکړ** (čūkáŕ) ص. نر.م. ۱) ړوند؛ ۲) نوکر.

**چوکړه** (čūkaŕá) ښځ.م. څوکړه، رنگړی، ړېړه، چوکړه ړېره، تار تار ړېره.

**چوک سترگی** (čūkstə́rgay) ص. نر.م. چغر، يو سترگی، کوږ سترگی.

**چوکک** (čukák) نر.م. هغه لرگي چې په ځمکه کې ښخېږي او دام ورپورې ترل کېږي.

**چوکل** (čukə́l) مص. مت. چف کول، دمول.

**چوکلی** (čukə́lay) مف. نر. چف کړی، دم کړی.

**چوکنه** (čukə́na) ښځ.م. چوفونه، دم کونه.

**چوکو** (čukó) ښځ.م. قمچينه، هغه لښته او نری لرگی چې غوايان پرې وهي او شړي.

**چوکول**(۱) (čokawə́l) مص. مت. ۱) پر گونډو کول، خې کول، پېټول؛ ۲) شملول.

**چوکول**(۲) (čawkawə́l) مص.مت. ښه کول، برابرول، بهترول، په ذوق برابرول.

**چوکول**(۳) (čukawə́l) مص. مت. کېنول، لگول، ښخول، پنيری لگول، بوټی لگول.

**چوکه**(۱) (čuká) ښځ.م. ۱) چکه، لښته، هغه لرگی چې غوايي ورباندې وهي؛ ۲) ټيکه، د

دتندي خال؛ ۳) تېرونه، نغـرنه، بنکته کونه؛ ۴) لږ اندازه، ذره؛ ۵) لښته؛ ۶) ملنه، ببهړی ۷) اړکی، لړی، پتیره؛ ۸) چونګی، تاکی.

**چوکه**[۲] (čawká) ښځ.م. دهندوانودخوراک دوکانچه

**چوکی**[۱] (čawkáy) ښځ.م. ۱) څـوکی، کرسي؛ ۲) څـوکی، د پیره دار ځای، تـانه، مـورچل؛ ۳) زیارت ته تلل؛ ۴) رسمي چوکی، مقام.

**چوکی**[۲] (čukáy) ښځ.م. دام، بلیره، د بتیرانو یو ډول د نیولو دام.

**چوکی** (čúkay) ص. نر.م. چوک، کم، لږ، ذره.

**چوکي چوکي** (čúkičúki) ص. نر.م. لږ لږ، کم کم، ذره ذره، کم شی.

**چوکیدار** (čawkidā́r) نر.م. څوکیدار، پیره دار، ساتونکی، ژغورونکی.

**چوکېدل**[۱] (čokedə́l) مص. ل. خپ کـېدل، اوښ چو کېدل، ببتېدل، په ګونډو کېدل.

**چوکېدل**[۲] (čawkedə́l) مص. ل. ۱) برابرېدل، ښـه کېدل، په ذوق برابرېدل؛ ۲) روزګار سمېدل.

**چوګان** (čawgā́n) نر.م. پولو، سانګه، نېزه.

**چوګان بازي** (čawgānbāzí) ښځ.م. ۱) دسانګې لوبه، نېزه بازي؛ ۲) ډې بازي، لـو، چمچاکی؛ ۳) یو لـوبه ده چې سړی په آس باندې سپرېږي او د لرګي سره توپ وهي.

**چول**[۱] (čol) نر.م. ۱) بیابان، صحرا، بېدیا، مېره؛ ۲) ذکر، د نارینه تناسلي آله.

**چول**[۲] (čawə́l) مص. مت. ۱) منفجرول؛ ۲) چاود پکې پیدا کول؛ ۳) اچول، غورځول، ترېبل.

**چول**[۳] (čūl) نر.م. د دروازې چون، دوره چور.

**چولاوه** (čūlā́wa) ص. نر.م. جل وهلی، ځل وهلی.

**چولايي** (čawlāyí) ښځ.م. چلوايي، یو ډول ساګ.

**چولک** (čūlák) نر.م. پپ، تربرف، لمده واوره.

**چولول** (čolawə́l) مص. مت. خوله خـلاصول، څه ویل، خوله ببرته کول، خوله ویتول.

**چوله** (čolá) ښځ.م. ۱) درز، چـاود؛ ۲) سـوری؛ ۳) کور، مکان؛ ۴) کوڅه؛ ۵) ډېره تنګه لاره؛ ۶) د څه ویلو لپاره خوله خلاصونه.

**چولی** (čūláy) ښځ.م ۱) کمرچینه کمیس، ګونځې کمیس؛ ۲) زوړ دام، شکېدلی دام.

**چولی**[۱] (čawláy) مف. نر.م. ۱) درز کړی، چاود شوی؛ ۲) منفجر کړی، منفلقه شوی.

**چولی**[۲] (čuláy) نر.م. د کوچنیانو د لـوبو غونډ، ګرد او ښوی کاڼی.

**چولیانی** (čūlyānáy) ښځ.م. جـارګی، خندکی، د ډوډۍ پخولو وړه کوته.

**چوم** (čūm) نر.م. چم، د خاورو یا ختـو یا کپلـو هغه غونډه برخه چې د یوه ببل سره راجلا شي.

**چومبی** (čūmbáy) نـر.م. ۱) شـتومی، د اونګ لاستی؛ ۲) مولی، اوږد او غونډ موند شی.

**چومر** (čūmár) نر.م. ۱) سرمـل، هغه کـړی چې د اوښ مهار په کې بندېږي؛ ۲) هغه تار یا مـزی چې د اوښ په پزه کې اچول کـېږي.

**چومړدی** (čūmaṛdáy) نر.م. چمړدی، د پایکـو منځوی لرګی چې پایکو وربانډې ګرځي.

**چومک** (čūmák) نر.م. شومک، د اوښانو یو ډول ناروغي ده چې خوله یې کږېږي.

**چومکی** (čūmakáy) نر.م. چمبکی، چرګوری.

**چومل** (čūmə́l) مص. مت. بنکلول، مچو کول.

**چومی** (čūmáy) ښځ.م. مچه، مچو، مچکه.

**چومی** (čūmay) نر.م. د کوچنیانو یو ډول ناروغي ده چې له خولې یې لاړې یا ناټې بهېږي.

**چونبېل** (čūnbél) نر.م. لوی او غټ کچکول.

**چونټره** (čontára) ښځ.م. ... کوکاپڅه ... تړه

چونتی (čuntáy) ص. نر.م. شونتيا، چونډی، يو لاسی، شونتی.

چونتې (čūnti) ښځ.م. ښتې، چوټې، چوټی، د سر اوږده وېښتان.

چوندی (čundáy) نر.م. ګوډی، ګوډ ګوډ ک، په يوه پښه پر لاره تلل، پر چرندی تلل.

چونکی (čunkáy) ص. نر.م ۱) بې‌شرمه، بې‌حيا؛ ۲) خوسا؛ ۳) بدعمله؛ ٤) نر.م. سارنګ.

چونګ[1] (čūng) نر.م. ۱) دبر لېږشي، د لېږي نيمايي؛ ۲) دچرګوري اواز؛ ۳) پټه فيصله، پټه سلا او مشوره.

چونګ[2] (č(u,ə)wáng) نر.م.و.ګ. چونه[2].

چونګاوڼ (čūngāwáṇ) ص.نر.م. چونګن،شور کوونکی، چينګن.

چونګښه (čungáṣa) ښځ.م. چنګښه، چندخه، ښندخه، ښنګښه، ښونګښه، ښينښه.

چونګن (čūngán) ص. نر.م.ج. ژړنـدوکی، چونګېدونکی، چينګن، ژړندا.

چونګول (čūngawə́l) مص.مت. چينګول، چنګول، ژړول، په‌ژړا راوستل.

چونګی (čūngáy) ص.نر.م. ۱) شونتی، په يوه لاس شل؛ ۲) نر.م. اندازه پيمانه؛ ۳) ذره، لږ شی؛ ٤) ګته، بری.

چونګي چونګي (čūngíčūngí) لږلږ، لپه لپه، چاته يو شی په لږه اندازه او پر لاس ورکول.

چونګېدل (čūngedə́l) مص.ل. چينګېدل، ژړېدل، په‌ژړا کېدل، ژړا ته مجبورېدل.

چونه[1] (čoná) ښځ.م ۱) وره، غوندکی او کمزوري نبا (انا)؛ ۲) اماک، آمک.

چونه[2] (čawáṇa) ښځ.م. چونګ، چوروونه، درز په کې پيدا کونه، چاودنه.

چوڼی (čūnáy) ص. نر.م. ښايسته‌کی، ښکلی، کوچنی ښايسته شی.

چوڼی[2] (čūnáy) ښځ.م. ۱) زره ته‌نبهر، زرونه نبهردي مـاشوم؛ ۲) چينې لوبښی؛ ۳) العل، ياقوت، د لعل په څېر.

چوڼی[3] (čawnáy) ښځ.م.و.ګ. چونی.

چوڼ (čūṇ) ص.نر.م.ج. ۱) غوره، ښه؛ ۲) نر.م. کب؛ ۳) چوړ، د دروازې او کټ چړ؛ ٤) چاڼ، خوښونه؛ ٥) تيټ اواز؛ ٦) د وېالې سوری؛ ۷) د توپک غوزه؛ ۹) انګښتې؛ ۱۰) د کميس ګونځې.

چوڼا (čūṇā́) ښځ.م.و.ګ. چونهار.

چوڼ چوڼه (čūṇčū́na) ښځ.م.و.ګ. چنچنه.

چوڼکی (čūṇkáy) نر.م. ۱) د مرغيو اواز؛ ۲) د اوبو د بهېدلو اواز.

چوڼل (čūṇə́l) مص.مت. ۱) خوښول، غوره کول، ټاکل، په ګوته کول؛ ۲) چڼول، چانول؛ صفا کول؛ ۳) چوڼول، جامو ته ګونځې ورکول.

چوڼول (čūṇawə́l) مص. مت. ۱) خوښول، غوره کول؛ ۲) مرغی په اواز راوستل؛ ۲) حرکت کول، ګرځېدل؛ ۳) مايعات شوروول، چړول.

چوڼوونی (čūṇawū́nay) نر.م. چاڼ، چانوونی، چڼ، چاڼ کوونی، د چڼولو لوښی (آله).

چوڼهار (čūṇahā́r) نر.م. چنهار، د مرغانو چنهار، د مرغيو د چنېدو اواز.

چوڼی (čūṇáy) نر.م. ۱) بلبل؛ ۳) د کاريز سوری.

چوڼی[1] (čūṇə́y) ښځ.م. چانې، چڼې، پانه.

چوڼی[2] (č(aw,o)ṇə́y) ښځ.م. چاونې، عسکرې قشله، د عسکرو د اوسېدو ځای.

چوڼيا (čūnyā́) ښځ.م. ۱) بلبل، چوڼی؛ ۲) بنفشه يې رنګ.

**چونیاکوکی** (čūṇyākokáy) ښځ.م. د چنبېلو گل، چنبېلی گل.

**چونیاکی** (čūṇyākáy) ښځ.م. د بنفشې گل، بنفشه یی رنگ، د بنفشې بوټی.

**چونیانی** (čūṇyānáy) ښځ.م. ۱) پـه کـور کې دننه تشناب، د کورچرچوبی؛ ۲) پخلنځی.

**چونېدل** (čūṇedə́l) مص.ل. ۱) چنـېـدل، بلبـل چغېدل؛ ۲) چورېدل، خورېدل؛ ۳) چاڼ کـېدل، چنېدل؛ ٤) گونځې گونځې کېدل.

**چور** (čawū̃) نـر.م. گـرد له، هغه باد چې له واورې سره یو ځای وي.

**چورنکی** (čawū́nkay) فا.نر.م. ۱) درز پـه کې پیداکوونکی؛ ۲) چاودوونکی.

**چورنگړت** (čawūngṛát) نـر.م. چـنـدرو، د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**چوه** (čawá) ښځ.م. ۱) کجاوه، لویه توکری؛ ۲) یو دول خوشبویه بوټی؛ ۳) د ډبرې چـاود چې اوبه ترې راوځي؛ ٤) هغه شـلمه چې نباتات په کې شنه وي؛ ٥) دیچه، جویه؛ ٦) چاک، درز.

**چوهاړی** (čūhāṛáy) ص.نر.م. چوړی، چـواړی، چوهړی، ناپاک، مردارخور، گنده.

**چوهړه** (čuhṛá) ښځ.م. گونځه، کوریته، گونجې.

**چوی** (čawáy) ښځ.م. د وښو توکری، شکری.

**چه** (ča) ښځ.م. سیوری، پټونی، پناه ځای.

**چه** (č(e,i)) اد. چې، د ربط ادات (توری) دی.

**چهر** (čahr) نر.م. یو بوټی دی چې ژېړ گلان لري.

**چې** (če) اد. ۱) د ربط توری دی؛ ۲) ښځ.م. د (چ) توری تلفظ.

**چي** (či) ور. له اسـم سره د لاحقـې په دول راځـي او صفت جوړوي، لکه: نندارچي.

**چی ایشی** (čayisáy) نر.م. چایجوشه، چاییر.

**چیبر** (čebár) نر.م. کسبگر، کاسب.

**چیت** (čit) ص.نر.م.ج. ۱) چپلیت، چپېړ، څپېړ؛ ۲) تیت، تیتو؛ ۳) چخپیت، چیت پیت.

**چیت پیت** (čitpit) ص.نر.م.ج. بنځې چپلیت.

**چیترو** (čitró) ښځ.م. د کوچنیانو د لوبو غونډ کانی.

**چیتره** (čitrá) ښځ.م. گرد کانی دی چې کـوچنیان لوبې وربانډې کوي، ړیانکی.

**چیتړه** (čitṛá) ښځ.م. ۱) اوبـرن، نرم، اوبلن شی؛ ۲) د نگره غوبنه؛ ۳) پوده او شیرې کالي.

**چیتوالی** (čitwā́lay) نر.م. چخپیتوالی.

**چیتول** (čitawə́l) مص.مت. چت پتـول، چپلتول، څخپیتول، چپېړتول، پلنول.

**چیته** (čéta) ض. چرته، چېرې، کوم پلو.

**چیتی** (čitáy) ښځ.م. ۱) ړیانکی، د کـوچنیانو د لوبو تیږه؛ ۲) موځې؛ د یوې لوبې نوم.

**چیتېدل** (čitedə́l) مص.ل. ۱) چپلیتېدل، پلنېدل، اواربدل، تکېدل؛ ۳) ماتېدل.

**چیټ** (čiṭ) نر.م. یو دول گلداره توکر دی.

**چیټاکی** (čiṭākáy) ښځ.م. وگ. چټاک.

**چیټه** (čeṭá) ښځ.م. ۱) تاکید، تینگـه؛ ۲) تاوان، دنډ، ضرر؛ ۳) چاره، بند وبست.

**چیڼه** (čiṇá) ښځ.م. ۱) د چرسو گولی؛ ۲) فیصله، جوړه، روغه.

**چیټی** (čiṭáy) ښځ.م. رسید، رسیدخط، لیک.

**چیچړ** (čičáṛ) ص.نـر.م. ۱) گونځې، گـونجې؛ ۲) سرتمبه، له یوې خبرې څخه نه تېرېدونکی، ځېلې.

**چیچړو** (čičṛó) ښځ.م. ۱) چینډرو؛ ۲) د چینډرو یوه خاصه خانه.

**چیچړوبی** (čičṛobáy) ښځ.م. چـمـچوبی، تشناب، چوبانی

**چیچړه** (čičṛá) ښځ.م. ۱) اوبلن شی؛ ۲) ډنګره غوښه، پیپره غوښه.

**چیچړی** (čičṛáy) ښځ.م. ۱) کنه، یوه حشره ده چې دحیواناتو پر پوستکي پورې نښتې وي؛ ۲) وړه سپیره، ریچه.

**چیچکه** (čičáka) ښځ.م. چوچکه، چرګوړی، بتکه، نوې څوانه شوې چرګه.

**چیچګی** (čičgáy) نر.م. ناوکی، ګوډی، نانځکه.

**چیچل** (čičál) مص. مت. ۱) چچل؛ ۲) په غاښو پرې کول، غاښ لګول؛ ۳) د مار چک لګول، لړم نیښ وهل، د غومبسې نیښ وهل.

**چیچلی** (čičálay) مف. نر.م ۱) په غاښو پرېکړی شوی؛ ۲) ټک ورکړی؛ ۳) چچلی، نوکاري شوی

**چیچوغاړه** (čičoǧāṛa) ښځ.م. و ګ. چاچوغاړه.

**چیچوک** (čičúk) نر.م. یوه لوبه ده.

**چیچه** (čečá) ښځ.م. تاکید، ټینګه، چیته، چېته.

**چیچی** (čičáy) نر.م. د مرغۍ او چرګې بچی.

**چیخا** (čixā́) ښځ.م. چیغه، توتو، چخه، کورې، د سپي د شړلو غږ.

**چیختان** (čixtā́n) ص. نر.م. ج. و ګ. چختار.

**چیخړن** (čixṛán) ص.نر.م. ۱) ګنده، وروست، لړلی؛ ۲) چیخن، چوخن، چخې سترګی.

**چیخل** (čixál) مص.مت. چخل، منډل، ډکول، ننه ایستل، چوخول.

**چیخن** (čixán) ص. نر.م. چخن، چخړن، هغه څوک چې سترګې یې تل چخې کوي.

**چیخنول** (čixnawál) مص.مت. راکښل، راښکل.

**چیخوړی** (čixoṛáy) نر.م. زوړ، بېکاره څیز.

**چیخي** (čixé) ښځ.م. ۱) چیخني، چوخني، د سترګو میل یا چیخړي؛ ۲) د ماشومانو د مقعد چیخني.

**چیر** (čir) نر.م. څیرنګي، تېروسکي، چشنکي، تېره مخی کاني.

**چېرته** (čérta) ض. و ګ.: چېرې.

**چیرړه** (čirṛá) ښځ.م. چهره، لته، زړه لته، خونړه، خیره، رنجه، ریښکی.

**چیرک** (čirák) نر.م. نرۍ لاره.

**چېرې** (čeré) ض. چرې، چېرته، چرته، کوم ځای، کوم پلو؛ ۲) ق. فرضاً، که چېرې.

**چیړ** (čiṛ) نر.م. ۱) کنډ، کونډ، سرېښناک څیز؛ ۲) یوه اوچته ونه ده؛ ۳) لنده ګوره، چیرګوره.

**چېړ** (čeṛ) نر.م. ۱) بلوسه، برخلاقي؛ ۲) جنجال.

**چېړچاړې** (čeṛčāre) ښځ.م. مزې، چرچې.

**چېړل** (čeṛál) مص. مت. ۱) تنګول، چېړکول؛ ۲) جنجال کول، څېړل، خبره شاربل.

**چېړلی** (čeṛálay) مف. نر.م. ۱) تنګ کړی، ځورولی؛ ۲) څېړلی، په یوه خبره باندې ډېرې خبرې او بحث شوی.

**چیستان** (čistā́n) نر.م. اړ، معما، اړونه.

**چیستکی** (čistakáy) ص.نر.م. نرم اوبلن.

**چېشن** (češán) ص. نر.م. ۱) سهسن، بیر، وبښنه لرونکی؛ ۲) یو کلن اوښ چې وری پرې ولاړې وي؛ ۳) نر.م. سېرلی، اوزګوری.

**چېشنکی** (češankáy) نر.م. سېرلی، وزګړی، اوزګوری، یو کلن سېرلی.

**چېشل** (češál) مص.مت. چېښل، څښل، شکل.

**چیغار** (čiǧā́r) نر.م. چغار، چغهار، چغهاری.

**چېغل** (čeǧál) مص. مت. چغهل، چغارکول.

**چیغل** (čiǧál) نر.م. چغل، غلبېل، غټ غلبېل.

**چیغه** (číǧa) ښځ.م. چغه، کریږه، کریکه، فریاد.

**چیکړ** (čikáṛ) نر.م. چیکړې، ختې، لمدې ختې.

**چیل** (čil) نر.م. لین، کتار، صف، قطار.

**چیل** (čel) نر.م. ۱) پوړنی، ټیکری، زړوکی، زنانه ټادر؛ ۲) د غوزانو جومبک.

**چیلان** (čilán) نر.م. یو ډول حلال مرغه دی.

**چیلم** (čilám) نر.م. و.گ. چلم[1].

**چیلو** (čeló) نر.م. ۱) ترکاري، یو ډول سابه دی؛ ۲) مو. ویلون سل، یو ډول لوی وایلون دی چې څلور تارونه لري او بم اواز تولیدوي.

**چیله** (čelá) ښځ.م. د ژمي څلویښت ورځې یخنی.

**چېلی** (čeláy) نر.م. ۱) کچیکی، سېرلی، د وزې یا نر مرغومی، د بزې بچی؛ ۲) یو ډول وزه.

**چیمبا** (čimbá) ښځ.م. تورانی، د سهار بلبله.

**چیمخن** (čimxán) ص. نر.م. ۱) چینجي وهلی؛ ۲) ټګ، بې اعتباره؛ ۳) چیخن، چخړن.

**چیمکی** (čimakáy) له هګۍ نوی راوتلی چرګوری.

**چین** (čin) نر.م. ګونځه، ګونځې، کوت کوت.

**چین** (č(e,ay)n) نر.م. یو ډول زنځیر دی چې په واورو کې د موټرونو پر ټایرونو راپېچل کېږي.

**چینجخ** (činjáx) نر.م. چینډخ، چونګښه.

**چینجن** (činján) ص. نر.م. چینجي وهلی.

**چینجی** (činjáy) نر.م. چنجی، یو ډول حشره ده.

**چینچاړی** (činčáray) نر.م. چرچرک، یو ډول حشره ده.

**چینډخ** (činḍáx) نر.م. و.گ. چونګښه.

**چینډخ خور** (činḍaxxór) نر.م. بغبغو، بغ، کب خورکه، لوی ماهي خوره مرغۍ ده.

**چیندرو** (čindró) ښځ.م. چیندره، د کوچنیانو یو راز لوبه ده، ناڼک.

**چینده** (čindá) ښځ.م. سمڅه، چیوده، سمڅ.

**چیندي** (čindí) ښځ.م. د رخت وړه ټوټه، صافي.

**چینغړک** (čingəṛák) نر.م. چونغړک، کاکوړتک، چمغړک، قان قوړتک.

**چینګ** (čing) ص. نر.م. واز، ارت، خلاص.

**چینګ پینګ** (čingpíng) نر.م. ۱) انې بانې، انې وانې، بهانې، بانې، هغه دغه؛ ۲) ژړا.

**چینګخولی** (čingxúlay) ص. نر.م. وازخولی، چینګ داړی، ارت خولی، خلاص خولی.

**چینګکه** (čingáka) ښځ.م. وړه توریخونه مرغۍ ده چې د اواز په وخت کې لکۍ پورته کوي.

**چینګول** (čingawə́l) مص.مت ۱) ارتول، وازول، بېرته کول؛ ۲) ژړول، چنګول؛ ۳) څورول.

**چینګه** (čingá) ښځ.م. ۱) چینګه خوله، وازه خوله ۲) ص. ښځ.م. وازه، خلاصه.

**چینګېدل** (čingedə́l) مص.ل. ۱) خلاصېدل، بېرته کېدل؛ ۲) کړېدل، په عذابېدل، ژړېدل.

**چینل** (čenál) ښځ.م. ۱) چاینل، کانال، مجرا، معبر؛ ۲) کاریز، د اوبو لاره؛ ۳) خط مشي.

**چینه** (činá) ښځ.م. له ځمکې نه د اوبو د راوتلو ځای.

**چینی** (čináy) نر.م. سور او سپین آس.

**چیني** (činí) ښځ.م. ۱) بوره، شکره؛ ۲) د چین پورې اړوند څیزونه.

**چینۍ** (čiṇáy) ښځ.م. ۱) چونۍ، قلم، پولادي تېزه شوې میله ده چې اوسپنه پرې پرې کوي؛ ۲) چنۍ، د اوسپنې پانه.

**چیوتل** (čewatə́l) مص. مت. کېوتل، کښېوتل، ګیرېدل، نښتل.

**چیوده** (čewdá) ښځ.م. سمڅه، سمڅ، چیوه.

**چیوهل** (čewahə́l) مص. مت. کښول، کښېول، شکول، رابښکل.